# اسلامي نړۍ نن سبا

ليکوال : ډاکټر محمد على جريشه

ژباړن : مولوى جانباز " سرفراز "



# د کتاب پیژندنه

د کتاب عربی نوم : حاضر العالم الاسلامی
د کتاب پښتو نوم : اسلامي نړۍ نن سبا
لیکوال : ډاکټر علی جرشیه
ژباړن او ترتیب کوونکی: مولوی جانباز سرفراز
کمپوز : نورالحق " ملاخیل "
مخ پاڼه : احسان الله " منیب
خپرندوی : د پیغام خپرندوی مرکز
د چاپ نیټه : ۱۴۳۱ هجری قمری کال
د چاپ شمیر دویم ځل : ۱۰۰۰ ټوکه
پته : د پیغام خپرندوی مرکز ډهکی منورشاه قصه خوانی

ټیلفون : ۲۵۶۳۸۵۳ - ۰۹۱

اقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ الَّذِي عَلَّمَ بِالْقَلَمِ

عَلَّمَ الْإِنسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ

# د ژباړن خبری

الحمد لله الذي ارسل رسوله بالهدی ودین الحق لیظهره علی الدین کله ولو کره المشرکوین
والصلاه" والسلام علی امام المجاهدین وقائد الغر المحجلین محمد وآله وصحبه واهل بیته وعلی من اهتدی بهدیه الی یوم الدین وبعد :
په افغان پوهنتون کې وګمارل شوم چې د ( اسلامي نړۍ ) په هکله د لومړی صنف دویم سمستر محصلینو ته درس ورکړم که څه هم دا زموږ موضوع ده او هر بافکره او ژوندی مسلمان باید له خپلی نړۍ څخه خبر وی خو د عملی بحث لپاره پکار ده چې د باوری منابعو په رڼا کې خبری وشي
اسلامي پوهانو پدی هکله پراخی لیکنی کړي دی چې ځینی یې په دری ژبه هم ژباړل شوي دی ، په پښتو ژبه کې پدی برخه کې څه مخې ته رانه غلل
همغه وو چې د ډاکټر محمد علی جریشه کتاب حاضر العالم الاسلامي چې د هیواد نامتو لیکوال فضل من الله " فضلی " له خوا په دری ژباړل شوي وو راواخیست چې د تدریس په دوران کې تری زه او محصلین استفاده وکړو خو باید ووایم چې ډاکټر صاحب نوموړی کتاب د ( ۱۹۷۰ - ۱۹۸۰ ) کلونو په اوږدو کې لیکلی او نن (۲۰۰۰) کال دی ، پیښې او مسایل هومره بدل شوی دي چې هغه وخت یې هیڅ اټکل نه شو کیدای
د شوروي اتحاد په نوم د ظلمت او وحشت اوسپنیز دیوالونه ړنګ او د برلین دیوال لوټی لوټی شو
د نړۍ د نقشي په مخ نوی هیوادونه راووتل نو ځکه ما د ډاکټر محمد علی جریشه ص د کتاب ځینی برخی پرېښوولی او ترجمه مي نه کړی په خاص ډول په شوروي اتحاد کې د مسلمانانو ژوند برخه بلکی د هغه پر ځای می د ماوراء النهر او قفقاز مسلمانانو د ژوند تر عنوان لاندی نوی بحث ولیکه او چې د افغانستان برخی ته راغلم نو تاریخي پیښی او د جهاد خبری مي ښه په زړورتیا ترجمه کړی خو چې روانو حالاتو ته راغلم

هک پک شوم چې ښه خدایه اوس څه وکړم چا تـه مجاهد ووایـم او چا تـه باغی ؟ څوک غازي وګڼم ؟ او څوک شهید ؟

نه خو مفتی وم چې فتواء ورکړم او نه له حوادثو لرې وم چې د یوه او بل خبره په پټو سترګو ومنم او څه چې ورته هغه صاحبان وائی زه یې هم ورته ووایم نو بالاخره مي د خپل وطن خپله خبره ونه شوه کړای او دا مي پریښووله چې د قلم پر ځای ورځی او شپې پکي قضاوت وکړی او که ژونـد وو نو زما ناتـوانه قلم یې هم په نورو چاپونو کې د واقعیت پـه رڼا کي راونغاړی

اوس یوازې همدومره په پوره باور ویلای شم چې هیڅکله به په زور او ټوپک د افغانستان ستونزه حل نشي او دوی دواړه کش کوونکی اړخونه باید پوه شی چې یو یې هم کټلی نه شي او په کش کولو یې هسی خپل ځانونه او زوریدلی اولس لا پسی سترې کوی او بالاخره هغه چا ته زمینه او حالات برابروی چې د دواړو طرفونو او د دوی له هیلو سره به دښمنان وی

په پای کې د افغان پوهنتون د اسلامي ثقافت له استادانو د پوهنتون علمی معاون او په خاص ډول د پوهنتون د رئیس پوهاند اسدالله شینواری او د پوهنتون د نورو غړو څخه مننه کوم چې ددې کتاب په چاپولو کې راسره همکاری کړې وه

الله جل جلاله ته سوال دی چې زما دا نیمګړی هڅه پوره ومنی او د پوښتنی په ورځ یې زما په نیکیو کې وګڼی آمین یا رب العالمین

والسلام

مولوی جانباز ( سرفراز )

د افغان پوهنتون اسلامي ثقافت استاذ

## کره کتنه

د حاضر العالم الاسلامي ( اسلامي نړۍ نن سبا ) کتاب د دریو اړخونو له پلوه د یادونې وړ او د توصیف مستحق دی
۱ - د مؤلف د شخصیت له مخې
۲ - د کتاب د موضوع له مخې
۳ - د مترجم د انتخاب او ژوندی ترجمې له مخې
لومړی د مولف د شخصیت له مخې :
د کتاب لیکونکی په معاصر وخت کې هغه ژوندی څیره ده چې په عربي ماحول کې هغه د ژوندی نوم څښتن دی ښاغلی علي جریشه د یو نیک شهرته استاد په صفت ، هغه په عربي دنیا کې د یو ژوندی لیکوال په توګه او بالاخره هغه په اسلامي تحریک او مسلمان ماحول کې د یو حماسه غږونکي مبارز په صفت د ښه شهامت او د ښه شهرت شاته د ښه سیرت خاوند دی .
هغه په مصر کې ..... او وروسته د هغې مدینې په ماحول کې چې پوهنتون ته یې د نړۍ د هر ځای نه مسافر او مقیم طالبان په جذبه او ایمانداري راځي خپل نوم او د خپل شخصیت مقبولیت پوره خوندی ساتلی دی او په تېره په ځوانه طبقه کې یې د خپلې حماسي جذبې له مخې د سبک او تحلیل پلویان زیات دی .
د استاد دا لیکنه لکه د نورو لیکنو بلکې د هغو په نسبت زیاته په زړه پورې پدې ده چې هغه ځان د دغه لوي اسلامي وطن اوسیدونکی ګڼي او د همدې ځایه هغه د دغه لوی وطن او د هغه د ژور تاریخ او امیدواری راتلونکی په ارتباط د کتاب د چوکاټ ، فصل بندي او ژوندی تحلیل په بر کې ځان د امت او د هغه د وطن سره داسې نوک او ووري کړی چې د موضوعاتو په لړ کې لوستونکی وینې چې هغه د امت تاریخ او وطن دښمنان دقیق څیړي ، ټول اړخونه یې رالوڅ کړي بلکه لکه ټول یې چې د قد ښکاره کوونکې ښیښې په وړاندې ودرولي وي استاد سره لدې چې د

اسلامي نړۍ په نن او سبا او د هغې په سبا راتلونکو قضایاوو او تاریخي حوادثو یې داسې رڼا اچولې چې د دې امت سره آشنا انسان پوهیږي چې د استاد د موضوعاتو ترتیب او د معلوماتو انعکاس دواړه واقعاً جامع او واقعیت ته نژدې دي ولې دا یې په داسې لنډ او ژوندي تعبیر کې پیلی چې د خپل لوستونکي حوصله د کتاب د تطویل نه مخکې مخکې خوندي ساتي.

د کتاب مسلمان لوستونکي د کتاب نه دا ژور شعور اخلي چې هغه د یو مسلمان انسان په توګه د څومره لوی تهذیب او لوئی کورني او لوی وطن پوري مربوط انسان دی هغه د همدغو لویو څیزونو او د هغو دښمنانو په رڼا کې ویني چې هغه د بې باکه قیادت د بې باکه تعامل او خام دریغ له مخې نن د هغه کړاو او سقوط په ژۍ ولاړ دی چې که مسلمان امت هغه د خپل تاریخي ژورتابه او د دې وطن د مادي او معنوي شتمنیو په رابطه د هغه علمي او نوي تصور د خبرې په تخته ونه دروي نو پړ مخ لویدل یې حتمي دي.

د کتاب د فصلونو په لړۍ انسان پوهیږي چې اسلامي نړۍ له داخل نه د قوت د محورونو له مخې دومره فقیره نه ده لکه چې هغه نن د دښمنانو د توطئو او د خپل قیادت د خام کردار له مخې په فقر او سیاسي ذلت کې ژوند کوي!

که څه هم نن په اوضاع کې ډیر بدلون راغلی ولې د اسلامي نړي د نن او پرون حالت په ژوندی ژبه په لنډو ټکو کې بیان کړي چې هغې د بلها دښمنانو په لړ کې څه ولیدل؟ او اوس هغه د همدغو دښمنانو په محاصره کې څه حال لري؟ او څه نه دي چې د هغې په رابطه نه طرحه کیږي؟ همدا کیسه محترم مولوي سرفراز د عربي کتابتون له ګڼو الماریو رایستلی او هغه یې په داسې روانه پښتو ترجمه کړې چې کولای شي یو ابتدائي مسلمان متدین پښتون د علي جریشه په تاثر کې په اساني ورشریک کړي.

ځنګه چې د عربی متن موضوعاتو او فهرست ځنی برخی د افغانستان د فاتح ملت د جهاد په نتیجه کې دننني روان جریان د تسلسل نه د بیرونی هیری شوی کیسی تسلسل ته انتقال شوي نو ځکه محترم مترجم په کتاب کې د نوی ازادی شوی منځنی اسیا جریان او کونځلک شوي روسي د اوسنی حال په رابطه نوی مطالب اضافه کړي چې دا کار په حقیقت کې د کتاب عنوان او لوستونکي دواړه په خپل ځای د حالاتو سره په رابطه کې ساتی

خوشحاله یم په پښتو کې دغسی اضافه په داسی وخت کې وشوه چې د افغانستان مجاهد ملت د استاد په تعبیر ځوان کمونیزم راپرزولی او د امت د مسایلو په رابطه د افغانستان د ګډوډو حالاتو له کبله د وطن زامن په یو ساړه فکری ماحول کې غورځیدلی دی.

هیله ده دا کتاب به د هغه مواج ( څپاند ) تاریخ تسلسل د لوستونکی په ذهن کې ژوندی کړی چې د افغانستان د وروستیو حوادثو ورته صدمه رسولی ده مؤلف او مترجم ته د خدای پاک نه اجر غواړم

مزمل

د افغان پوهنتون د لوړ مشورتی مجلس غړی

## د لیکونکی سریزه

الحمد لله ، والصلاه ، والسلام علی رسول الله ، وآله وصحبه ومن والاه وبعده :

د اسلامي نړۍ د روانو حالاتو په هکله د خپلو سترګو لیدنه ،د خپلو حواسو احساس او د ثابتو او څرګندو دلایلو په رڼا کې څو کرښې لیکو.

پدی برخه کې برسیره په پورتنیو مراجعو له هغه چا می هم معلومات راټول کړي دي چې زمونږ په وړاندی منلی خلک دی. لکه د مورو د جبهي ، د فطاني د آزادۍ - د فلسطین د جهاد مشران.

او د داسي خلکو څخه مو هم معلومات راټول کړي دي چې مناسب مونده لیدلي چې نوم یې ولیکو او پدي برخه کې مو د اسلامي فقهي په اصل عمل کړي دي چې قاضي د هغه شاهد ، شهادت قبلوي چې د شاهد ربښتنوالي ورته معلوم او اعتماد یې پري راشي.

مونږ په همدی ډول په کوم ځای کې چې د شک او تردد سره مخ شوي یو او یا په یوه موضوع کې جلا ، جلا راپورونه راغلی دی د دلیلونو لټه کړي ده.

زمونږ د معلوماتو په رڼا کې د اسلامي نړۍ د روانو حالاتو په هکله زمونږ دا لیکنه خورا مهمه مرجع ده ځکه چې پدی برخه کې له مونږ څخه مخکې یوازې امریکائی لیکوال ( لوشروب ستودارد ) لیکنه کړي چې استاد عجاج نویهض غربی ته ژباړلي او شکیب ارسلان پري تبصره لیکلي.

که څه هم مونږ هڅه کړي چې د ټولي اسلامي نړۍ په هکله څه ولیکو خو زمونږ اصلی هدف دا وو چې د اسلامي نړۍ - د فکري ، سیاسی ، اجتماعي او اقتصادي اړخونو په څېړنه زیات زور واچوو - خو بیا هم د اهمیت په خاطر مو ځینی مسئلی په ځانګړي ډول ، جلا ، جلا څېړلی دي - لکه د لاسه تللي اسلامي وطن په صفت د فلسطین موضوع او د فلپاین موضوع د اسلامي مجاهد وطن په صفت او همدا ډول د نورو کم شمیرو مسلمانانو اوسیدونکو مسایل او نور.

د لوي او توانا الله جل جلاله په فضل او احسان زمونږ لیکنه په عامو او خاصو دوارو برخو کې یوه تحقیقي او پر څیړنو مبنی لیکنه ده چې د اشخاصو او افرادو ته د ګوتي نیولو څخه ژغورنه شوي ده نو مونږ ډیر ځل آن هغه نومونه چې مونږ تري روایت کړي دي هم پریښې دی او یادونه مو تری نده کړي ځکه په عام ډول د موضوع څیړل د اصلاح او سمون خورا ښه اسلوب دی او پدی ډول د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د سنتو تابعداري هم کیږی چې کله به هغه مبارک په منبر پورته شو نو د وران کارو نوم به یې نه اخیست بلکه عام الفاظ به یې داسې ویل :: ولي خلک دا او داسي کوي ؟ او دا هم منلي شوې خبره ده چې په افرادو او اشخاصو یې د قضاء د پریکړي څخه کومه فیصله څوک نشي کولای او ښکاره ده چې اوس نه مونږ قاضیان یو او نه د محکمو وخت دي .

خو لدې سره سره مونږ باور لرو چې هغو خلکو ته به هرو ، مرو د کړو بدل ورکړای شي چې د اسلامي نړۍ په مسائلو کې یې بدلاس وهلي دي.

ځکه اسلامي امت مخ په ویښیدو دي په هغه پخوانی درانه خوب بیرته نه ویده کیږي چې دښمنانو تري ګټه اخیستي وه . .

تاریخ هر څه له ځان سره ساتلي دي هغه چې پرون تیارو پټ کړي وو کیدای شي چې د سباء رڼا یې روښانه کړي .

لوي الله جل جلاله د هر چا په وړاندي او وروستو خبر دي هر څه اوري او هر څه ګوري

أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّ اللَّهَ الَّذِي خَلَقَهُمْ هُوَ أَشَدُّ مِنْهُمْ قُوَّةً وَكَانُوا بِآيَاتِنَا يَجْحَدُونَ [دسورت حم السجده ۱۵ آیت ]

( آیا نه ګوري چې هغه الله جل جلاله چې دوی یې پیدا کړي دي له دوي څخه خورا زیات توانا دي )

مونږ پدی هم باور لرو چې مونږ ان شاء الله د دي نړۍ وارثان او هغه متوسط امت یو چې لوي خدای په ټول بشر شاهدان ګرځولي یو .

وَلَقَدْ سَبَقَتْ كَلِمَتُنَا لِعِبَادِنَا الْمُرْسَلِينَ () إِنَّهُمْ لَهُمُ الْمَنصُورُونَ () وَإِنَّ جُندَنَا لَهُمُ الْغَالِبُونَ [دسورت صافات ۱۷۱ - ۱۷۳ آیتونه]

(له خپلو لیږل شویو بندګانو سره مونږ لا پخوا وعده کړیده چې په یقیني ډول به له هغو سره مرسته وشي او همدا زمونږ لښکر به برلاسی شي)

وَمَنْ يَتَوَلَّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَالَّذِينَ آمَنُوا فَإِنَّ حِزْبَ اللَّهِ هُمُ الْغَالِبُونَ [دسورت مائده ۵۶آیت ]

( او هر څوک چې له الله او د هغه د رسول او هغو کسانو سره چې ایمان یې راوړي دوستي کوي نو بې له شکه یوازي د الله ډله برلاسه کیدونکي ده )

وَلَقَدْ كَتَبْنَا فِي الزَّبُورِ مِنْ بَعْدِ الذِّكْرِ أَنَّ الْأَرْضَ يَرِثُهَا عِبَادِيَ الصَّالِحُونَ()إِنَّ فِي هَذَا لَبَلَاغًا لِقَوْمٍ عَابِدِينَ [د سورت انبیاء ۱۰۵ - ۱۰۶ آیتونه]

( مونږ په زبور کښی له پند وروسته لیکلي دي چې د زمکي واکمنی به زما نیکو بنده ګانو ته پلاس ورځي . دا عبادت کوونکی قوم ته لوی اعلان دی)

وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا مِنْكُمْ وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَيَسْتَخْلِفَنَّهُم فِي الْأَرْضِ كَمَا اسْتَخْلَفَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ وَلَيُمَكِّنَنَّ لَهُمْ دِينَهُمُ الَّذِي ارْتَضَى لَهُمْ وَلَيُبَدِّلَنَّهُمْ مِنْ بَعْدِ خَوْفِهِمْ أَمْنًا يَعْبُدُونَنِي لَا يُشْرِكُونَ بِي شَيْئًا وَمَنْ كَفَرَ بَعْدَ ذَلِكَ فَأُولَئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ [دسورت النور ۵۵ آیت ]

( پاک الله ستاسي له مؤمنانو او نیکي کوونکو سره وعده کړي چې خامخا به یې د ځمکي واکمنان وګرځوي لکه د دوی پخواني یې چې واکمن کړي وو او هغه دین یې چې دوي ته غوره کړي دي ښه به یې ورته مضبوط کړي او ډار به یې په اطمینان سره بدل کړي)

والله المستعان وعليه التكلان ولا حول ولا قوة الا بالله العلي العظيم

# لومړي باب

## اسلامي نړۍ او موقعیت يې په جغرافیوی ، فقهي او سیاسی اعتبار

د اسلامي نړۍ جغرافیه

اسلامي نړۍ په فقهي اعتبار

اسلامي نړۍ د سیاست په ډګر کې

# اسلامي نړۍ د نقشي پر مخ

**۱ : موقعیت یې :**

اسلامي نړۍ هغه وچه صحرا نده لکه څنګه یې چې پره دي جغرافیه پوهان تعبیروی چې له عایداتي منابعو خالي او اوسیدونکي یې په هر څه کې پاتي دي

بلکی د نړۍ په مینځ کي واقع ده چې د ځمکي له ټولو اړخونو سره یې پیوستون شته د ټولي نړۍ دریابونه ، بندرګاروي او د کشتۍ چلولو نړیوالي کربښي یې تر اغیزمنی اړیکو لاندې دي مهم سیندونه ، فصل کوونکي زمکي او پټ معدنونه دلته دي

د هند بحر ته د ننوتلو دروازی په اسلامي خاوره کې دي . ( د ملقاء تنګنا په ختیځ کې د ملایو او سو مطـره" تر مینځ او د باب المندب تنګنا په لویدیځ کې پرتي دي ) او د بحر متوسط دروازه هم پـه اسلامي خاوره کې ده چې ( ختیځه برخه یې د سویز د کانال او لویدیځه برخه یې د جبل الطارق تنګنا په نوم یادیږی ) او پدی ترتیب د ختیځ او لویدیځ تر مینځ نړیواله کشتۍ چلول یې په واک کې پریوزي

سپینه بحیره د څه وخت پخوا ټوله اسلامي بحیره وه او تر اوسه یې هم ختیځي او جنوبي څنډي اسلامي دي او که اسرائیل نه واي نو توره او مړه بحیره به ټولي اسلامي بحیري وي د نیل ، دجلي ، فرات ، سیند ، نیجر او نور مشهور سیندونه په اسلامي خاوره کې بهیږي غربي برخه یې د ۱۸ طول البلد سره شروع کیږي ( له افریقي ساحل څخه تر انتلانتیک پوري )

په ختیځ کې د سینګیانګ ( چیني ترکستان ) او غربي پاکستان پوری د طول البلد د ۹۰ درجو پوری اوږ دي چې پدی ترتیب اوږدوالي یې ۱۰۸ درجی دي

د شمال له خوا د عرض البلد د ۵۰ درجو ترکستان څخه پیل او په جنوب کې د عرض البلد تر ۱۰ درجو یعنی د استواء تر خط پوري پلن والی لري

چې په اسیا کې د اندونیزیا تر جزیرو او په افریقا کې د استواء د خط تر جنوبه د صومال تر آخره پرته ده.

د خبري نتیجه دا ده لکه څرنګه چې یو عالم ویلي دي چې که ټوله نړۍ د یوی دایری په شکل متصوره شي نو مرکز یې مکه مکرمه او په خاص ډول کعبه شریفه ده.

او پدی ترتیب ویلای شو چې اسلامي نړۍ د ټولی نړۍ مینځ دي او خورا مشهور متل دي (چې د شیانو غوره برخه منځنی برخه وي)

نو اسلامي نړۍ په جغرافیوی او اسراتیجي لحاظ د نړۍ په هره برخه پورته والي او غوره والي لري.

**۲ } طبیعي منابع**

طبیعي منابع عبارت دي له :

هغو موادو څخه چې د ځمکي کلک مخ تري جوړ شوي دي ، له هغو موادو څخه چې نباتي او حیواني برخه تری جوړیږي.

او له هغو موادو چې د اوبو او هواء برخي تري جوړیږی.

د ځمکي کلک مخ : عبارت دي له معدنیاتو ، خاوري او ځمکي په مینځ کې اوبو څخه

نباتي او حیواني برخي : عبارت دي له طبیعي او کرلو شوو نباتاتو او د ځمکي پر مخ د موجودو حیواناتو څخه

د اوبو برخه : عبارت دي له بحري حیواناتو چې مهم یې ماهیان دي او له معدني مالګي څخه

د هوا برخه : عبارت دي له ټولو هغو عناصرو څخه چې په تولید کې رول لري لکه : حرارت ، رڼا او باران

پورتنې شیان تر هغو ګټه لرونکي شیان نه ګڼل کیږي ترڅو چې پـه کار وانه اچول شي او یا یې د استعمال سیستم ونه پیژندل شي ، سکاره ، پترول ، لمریزه توانائی او داسي نور پخوا لدي چې د استعمال طریقه یې زده شي ګټه لرونکي شیان نه ګڼل کیده.

طبعي منابع په لاندی برخو ویشل کیږی :
۱ - هغه چې له مینځه نه ځی لکه شګي او وچه خاوره
۲ - هغه چې ژر ، ژر بدلیږي لکه نباتات
۳ - هغه چې ډیر ژر د استعمال په صورت کي له مینځه ځی لکه پترول او نور کانونه

د مینځه نه تلونکي منابع : اسلامي نړۍ د دوارو منابعو څخه خورا ډکه ده.
هغه پراخه او هواره ځمکه چې په سوډان ، لیبیا ، عراق او نوره اسلامي نړۍ کښده او هغه پراخي او هواري دښتي چې په غربي وچه ، مصر او نوره اسلامي نړۍ کې دی اسلامي نړۍ ته یې د زیاتو نه ختمیدونکو موادو د لرلو ویاړ وربښلی دي.

ژر بدلیدونکي منابع : له کومو ستونزو لوړي او اړتیا سره چې نن اسلامي نړۍ مخ ده د واقعیت له مخې له ځانه جوړه شوي او تپل شوي لوړه ده - که نه اسلامي نړۍ چې کوم څپانده بهیدونکي سیندونه لکه د ( نیل ، دجلي ، فرات او سیند ) سیندونه لري او ورسره خورا زیاته حاصل ورکوونکي ځمکه دا ممکن نده چې بیا دي هم اړ وي چې یوه دانه غله له ختیځ یا لویدیځ څخه وارده کړي.

په سوډان ، عراق ، لیبیا ، پاکستان ، مصر او عربي وچه کې په میلیونو جریبه ځمکه همدا اوس د کرنې وړ ده بې د کارګر لاس څخه بل هیڅ نه غواړي بلکه همدا زمکی څه وخت پخوا تولی کرل کیدی خو د ناپوهو عقلونو سترو او بی توانو لاسونو له کبله اوس په وچو صحراوو بدلي شوي دي.

د رومانیانو په زمانه کي د مصر ( ۹۰ ٪ ) ځمکه کرل کیده خو په ډیر تاسف سره باید ووایو چې اوس یې یوازې ( ۵ ٪ ) کرل کیږي او ( ۹۵ ٪ ) یې تولـه دښته او بی حاصله ګرځیدلی ده.

ژر له مینځه تلونکی مواد : لکه پترول او معدنونه - پدي هکله بس ده چې لاندی واقعیتونه وپیژنو :

أ } پټرول چې د توانائی لومړني مصدر دي اسلامي نړۍ د ټولې دنیا ( ۶ ، ۳۰ ٪) تولیدوي چې ورپسې د امریکا متحده آیالات دي چې ( ۶ ، ۲۹ ٪ ) تولیدوي.

خو کوم تیل چې د اسلامي نړۍ په ذخیرو کې پراته دي او بازار ته ندي وړاندي شوي د ټولي نړۍ د ذخیره شوو تېلو ( ۳ ، ۶۹ ٪ ) تشکیلوي.

او که چیري امریکائی او نور پردي شرکتونه د اسلامي نړۍ د تیلو په نه راویستلو ټینګار ونکړي نو د اسلامي نړۍ د تولید او ذخیری فیصدي به نوره هم پورته ولاړه شي.

مونږ په خپل مسئولیت سره اعلانوو چې مصر اوس د تیلو په یوه بحیره کې لامبو وهي چې ښي او کینړ اړخ ته یې پټرول پراته دی.

که چیری د امریکائي او نورو پردیو هغو شرکتونو چې د تیلو راویستلو ټیکي لدوي سره دي لاسونه او تصرفات بند شي چې دوي یوازي هومره تیل راوباسي چې په نړیوال بازار کې ورته اړتیا وي - نو په یقین سره وایم چې مصر به د تیلو یوه لویه ذخیره وي.

ب } نور معدنونه : تر ټولو مهم یې په صنعت کې اوسپنه او نور کلک معدنونه دي چې د اسلامي نړۍ په ډیر هیوادونو کې پیدا کیږي - په مالیزیا ، الجزایر ، المغرب ، تونس ، ترکیه ، مصر او نورو اسلامي هیوادونو کې خورا زیات موجود دي.

او نړیوال قوتونښښښه اجازه نه ورکوي چې راووزي ترڅو په صنعت د دوی منګولي ټینګي او لدې معدنونو څخه د خپل ضرورت په وخت کې کار واخلي

نفیس معدنونه : لکه سره زر ، الماس او یورانیوم.

په اسلامي نړۍ کې په خورا زیات اندازه شته خو لدی کبله چې اړوند اسلامي هیوادونه یې اندازه نه څرګندوی نو مونږ یې هم نه واضح کوو.

بی له پټرولو د توانائی نور منابع له مونږ سره د اوبو شر، شري چې د برېښنا په تولید کې کومک کوي خورا زیات دي له مونږ سره غوړي ،

طبعي ګاز ، او همدا ډول د طاقت هغه ستره او لويه منبع هم شته چې لا تر اوسه په بشپړ ډول نده استعمال شوي چې هغه لمريزه توانائي ده . ننی پر مخ تللی علم وائي چې که په پوره ډول تري ګټه واخيستل شي نو ډير ژر به لمريزه توانائي د يو لوي طاقت په صفت وپيژندله شي.

توليدي قوت : توليد په لاندې دري عناصرو اتکاء لري.

۱ - بشري طاقت
۲ - خام مـــواد
۳ - سـرمـــايـه

که اسلامي نړۍ وکولای شي ( که څه هم يو ځل وي ) چې د خپلو هيوادونو تر مينځ په زوره جوړ شوي سرحدونه ونړوي ( د ويزي او پاسپورت مشکلات لري کړي ) نو اسلامي نړۍ به د دنيا لوي اقتصادي قوت وګرځيږي ځکه مونږ د :

ا } بشرى طاقت :

په برخه کې زر ميليونه مسلمانان لرو چې د نړۍ هيڅ دولت دومره نفوس نلري. او که له دومره زيات بشري قوت سره اخلاص او د کار سره مينه چې اسلام يې په خپلو پيروانو لازموي يو ځای شي نو اسلامي نړۍ د خورا لوي طاقت خاونده وي.

ب } خام مـواد :

لږ څه وړاندي مو پدي برخه کې تفصيلي ليکنه وکړه او اوس همدومره وايم چې په نړۍ کې هيڅ دولت نشته چې د اسلامي نړۍ په پرتله دي خام مواد ولري

ج } سرمايـه :

که مسلمانان خپله سرمايه په امريکائی او اروپائی بانکونو کې ذخيره نه او په پوهی او ناپوهی سره د هغوی د اقتصادي پياوړتيا وسيلی ونه ګرځی نو اسلامي خاوره له هر چا زياته سرمايه لرونکی خاوره ده.

په غربی بازارونو کې کله نا کله قصداً د پردیو روپو قیمت پریوزي چې هدف ترې یوازې همدا وي چې مسلمانو پیسه اینبوونکو ته تاوان ورسیږي.

په وروستیو وختونو کې د یوه اسلامي دولت ملي عایدات د امریکا د متحده ایالاتو له عایداتو څخه زیات ښودل شوي دي.

لدي سره ، سره چې نړیوالو بازارونو ، د بحري ، بري او هوائي سفرونو مرکزونو - دا چې اسلامي نړۍ د دنیا په مینځ کې پرته ده وکتل شي نو په ډاګه به څرګنده شي چې کیدای شي چې اسلامي نړۍ د دنیا لوي اقتصادي قوت وګرځیږي خو کله به مسلمانان ویښیږي ؟ او کله به د خپلو کارونو واګي په خپلو لاسونو کې نیسي ؟

## اسلامي نړۍ د فقهي په رڼا کې

علماوو نړۍ په دار حرب او دار اسلام سره ویشلي ده.

د فقهی په رڼا کې اسلامي نړۍ دار اسلام دي - خو د دار اسلام معنا څه ده ؟

علماء پدی خبره یوه خوله دي چې په هر ځای کې اسلام حاکم وي هغه دار اسلام دي خو دا چې اسلامي حکومت یعني څه ؟ تر څو د عمل په ډګر کې د جلا والي سره مخ نشو دا یقینی خبره ده چې لاندې دري شرطونه څرګندوونکي دي چې دلته په قانوني ډول اسلام حاکم دي او که نه ؟ دا دري شرطونه د خدای د کتاب او د پیغمبر د سنتو څخه راوتلي دي.

چې عبارت دی له :

۱ } قانون باید یوازې د الله وي ځکه د قانون جوړولو واک یوازي د الله سره دي.

شَرَعَ لَكُمْ مِنْ الدِّينِ مَا وَصَّى بِهِ نُوحًا وَالَّذي أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ [دسورت الشوری ۴۲ آیت]

( تاسو ته مي هغه دین ښاکلي دي چې نوح پري وصیت کړي او هغه چې مونږ تاته وحي کړي دي )

أَلَا لَهُ الْخَلْقُ وَالْأَمْرُ تَبَارَكَ اللَّهُ رَبُّ الْعَالَمِينَ [دسورت الاعراف ۵۴ آیت]

( خبردار چې پیدایښت او واکمنی د هغه ده ډیر لوي او بابرکته دي هغه الله چې رب د ټول عالم دي )

أَمْ لَهُمْ شُرَكَاءُ شَرَعُوا لَهُمْ مِنَ الدِّينِ مَا لَمْ يَأْذَنْ بِهِ اللَّهُ [الشورى : ۲۱ ]

( ایا هغوی داسی شریکان لري چې هغه دین یې ورته ټاکلي دي چې الله پري امر ندي کړي ؟ )

د خدای د قانون د پورتنی اړخ تر څنګ بل اړخ هم شته چې قرآن کریم ورته اشاره کوي :

وَلَوْ رَدُّوهُ إِلَى الرَّسُولِ وَإِلَى أُولِي الْأَمْرِ مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ الَّذِينَ يَسْتَنْبِطُونَهُ مِنْهُمْ [دسورت النساء ۸۳آیت]

( او که دوي خبره پیغمبر ته وګرځوي او یا د هغوی د کارونو واکمنانو ته نو هغه خلک به یې په مفهوم پوه شي چې پدوي کي د خبري د بیخ ته د رسیدلو توان ورسره وي ).

او دا میدان د علماوو د اجتهاد ډګر دي او پدي ترتیب زمونږ قانون توان پیدا کولای شي چې د حالاتو او مختلفو غوښتنو موافق ځواب ووائی.

۲ } د خدای قانون باید تر ټولو قوانینو لوړ وی نه ورسره نور قوانین برابري کولای شي او نه تري لوړیدلای شي.

که وویلي شي چې اسلام د قانون جوړولو مهمه مرجع ده معنا ئې دا شوه چې نور څه هم د اسلام تر څنګ د قانون جوړولو مرجع کیدای شي او هغوي هم د اسلام مرتبي ته ورسیدل

او که وویل شي چې اسلام د قانون جوړولو دري یمه مرجع ده نو معنا ئې دا ده چې نور قوانین د اسلام په قانون لوړ شو . او دا دواړه صورتونه پورتنی اصل چې ( د خدای قانون به تر ټولو قوانینو لوړ وي ) ماتوي.

دلیل یې د قرآن کریم دا مبارک آیت دی .

يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَيْ اللَّهِ وَرَسُولِهِ [الحجرات : ۱ ]

( ای مؤمنانو ! له الله او د هغه له رسول نه مه وړاندې کیږۍ ) .

مفهوم يې دا دي چې ستاسي خبره او قانون بايد د الله او رسول تر خبري لوړه نه وي

يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَرْفَعُوا أَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ [الحجرات :۲ ]

( ای مؤمنانو ! خپل غږ د پيغمبر په غږ مه لوړه وئ ) .

دا خبره د خيال نه لوړه ده چې د پيغمبر په غږ دی د غږ پورته کولو اجازه نه وي او د خدای او د هغه په قانون دي د قانون د لوړوالي اجازه وي .

رسول اکرم صلی الله عليه وسلم په خپله فرمائي

من قاتل لتکون کلمه" الله هی العليا فهو فی سبيل الله ( څوک چې د خدای د کلمی د لوړ والي لپاره وجنګيږي بس همدا جنګ د خدای د لاري جنګ دی )

د خدای د کلمي معنا عامه ده چې ټول قوانين په کې شامل دي .

که چيری د خدای قانون پکې لوړ نشي هغه جهاد نه بلکه جنګ او جګړه ده .

۳ } د خدای قانون بايد په بشپړ ډول عملي شي : د ژوند په ټولو اړخونو کې: عقيدي ، اخلاقو ، عاداتو او ټولو کړو ، وړو .

که چيري قصداً د ژوند کوم اړخ له اسلام څخه خالي وي نو د اسلام قانون عملي نه او د عملي کولو لپاره يې جهاد واجب دي .

وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّى لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ لِلَّه [ د سورت البقره ۱۹۳آيت ]

( تر هغو ورسره وجنګيږي چې فتنه ورکه او واکمني ټوله د الله وي ) .

د دی شرط دلايل په لاندې ډول دي .

وَاحْذَرْهُمْ أَنْ يَفْتِنُوكَ عَنْ بَعْضِ مَا أَنزَلَ اللَّهُ إِلَيْكَ [المائده: ۴۹ ]

او بايد له هغوي نه ځان وژغوري هسي نه چې تا د ځينی هغه څه څخه لري کړي چې الله پاک تا ته نازل کړي دي .

د خدای قانون چې حاکم نه وي قرآن يې جاهليت ګڼي

أَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُونَ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنْ اللَّهِ حُكْمًا لِقَوْمٍ يُوقِنُونَ [دسورت المائده ۵۰ آيت ]

( آیا هغوي د جاهلیت حکم غواړي ؟ او څوک دي ښه واکمن له الله څخه د باور کوونکي قوم لپاره ؟ )

د خدای قانون چې عملي نشي د خدای او رسول جنګ ورته ویل کیږي

فَإِنْ لَمْ تَفْعَلُوا فَأْذَنُوا بِحَرْبٍ مِنْ اللَّهِ وَرَسُولِهِ [دسورت البقره ۲۷۹ آیت ]

( که تاسي ( سود خوړل ) پري نږدۍ نو د خدای او د هغه د رسول له لوري تاسي ته د جنګ اعلان دي ) .

د خدای او رسول سره مخالفت او جګړه ورته ویل شوي

من حالت شفاعته دون حد من حدود الله فقد ضاد الله في حکمه [ ترمذي ]

( د چا ملاتړ چې د خدای د حدودو د عملي کیدو په لار کې خنډ شي نو د الله جل جلاله د حکم سره یې دښمني وکړه ) .

په کوم هیواد کې چې اسلام حاکم نوي بي له امام ابو حنیفه رحمه" الله علیه نور امامان یې دار الحرب ګڼي.

او چې لاندې دوه شرطونه پوره شي امام صاحب ورته دار السلام وائي

- چې مسلمانانو ته په کې امن وي
- چې د نورو اسلامي هیوادونو سره ګاونډي وي.

ځینی نور علماء دار السلام په لاندې برخو ویشي

۱ } د عدل ځای : چې اسلام پکې حکومت وکړي او خلیفه یې مشري کوي.

زیات علماء وائې چې هجرت ورته واجب دي .

۲ } د باغیانو ځای : هغه ځای ته ویل کیږی چې د قانوني خلیفه په ضد باغیان راپورته او تري یې ونیسني . پر مسلمانانو واجب ده چې د خلیفه ملاتړ وکړي تر څو منطقه د باغیانو څخه آزاده کړي.

۳ } د بدعت ځای : هغه ځای ته ویل کیږی چې بدعت غالب او د پیغمبر سنت تر پښو لاندې شوي وي. په مسلمانانو لازم ده چې د خدای د حکم د عملي کولو او د بدعت له مینځه وړلو لپاره جهاد وکړي.

۴ } د کافرانو په لاس کې اسلامي خاوره : هغه ځای ته ویل کیږي چې د مسلمانانو پلاس کي وي اسلام پکې حاکم وي. بیا یې کافران ونیسي.
په مسلمانانو جهاد فرض دي چې باید آزاده یې کړي.
او ځینی دار حب په لاندې برخو ویشي
ا } د کفر وطن چې د کافرانو حکومت پکښې وي.
ب } د پیمان وطن هغه وطن دي چې زمونږ ( مسلمانانو ) او دوي تر مینځ تړون وي پورتني ټول قسمونه جلا ، جلا احکام لري چې د ( جنګ او سولې ) او یا په نوي اصطلاح ( د بین المللي قانون ) په ضمن کښځیړل کیږي.

## اسلامي نړۍ او نوره دنیا

په تیرو برخو کې د اسلامي نړۍ جغرافیه.
او نړۍ د فقهی په رڼا کې پوره وڅیړله اوس نړۍ د سیاسي اړخ له مخې څیړو.
لاندې دوه ستر قوتونه د نړۍ په نیولو کې سره په مسابقه کې دي.

### ا } سرمایه دارانه قوت

که څه هم سرمایه داري یوه اقتصادي اصطلاح ده خو لدي کبله چې سیاسی ملاتړ لري نو د یو خاص پکت لپاره نوم ګرځیدلي دي چې د اقتصاد له مخې پانګه وال سیستم او د سیاست په اړخ کې دیموکراسي او په اجتماعي اړخ کې د خپل سرۍ او مطلقي آزادۍ له خوا اداره کیږي.
د شلمي پیړۍ تر نیمائي پوري انګلستان د دي پکت مشری په غاړه درلوده خو بالاخره یې د امریکا د متحده ایالاتو څخه غوښتنه وکړه چې په لري ختیځ کې خپل اقتصادي روابط پراخ او رسوخیت اضافه کړي چې په نتیجه کې امریکایان د هغه څه واکمن شو چې انګریزانو یې اجازه ورکوله او د هغه څه واکمن شو چې انګریزان یې پریښودلو ته لا تیار نه وو.
امریکا په ښکاره ډول د آزادۍ غوښتونکو جنبشونو ملاتړ وکړ او پدي ترتیب یې د ځان لپاره د ننوتلو لار آواره او هغه څه یې په خلکو مسلط کړل چې نوی استعمار یې د صنعتي پرمختګ او صنعتی پیاوړتیا په نوم په نورو ورتپې

او پدي ډول سي ، آی ، اې د امریکا د جاسوسۍ پټي دستګاه او پنتاګون یعني د امریکا د دفاع د وزارت د مرکزي دفتر او سپینې ماڼۍ وکولای شو چې خپلي ریښي په هغو هیوادونو کې هم وزغلوي چې سرمایه دارانه نظم هلته مسلط نه وي او د خندا وړ خبره خو لا دا ده چې د دي منطقو ځینی دولتونه د کمونیزم او سوسیالیزم چیغي وهي خو په سیاسي ډګر کې د امریکا په مشرۍ د سرمایه دارانه نظام د پالیسو او روش تابع دي.

**ب } د کمونیزم پکت**

لدوي څخه هغه دولتونه عبارت دي چې کمونیزم یې د اقتصادي روش په صفت قبول کړي وي او همدغه روش د دي پکت ځانګړي نښه ګرځیدلي ده چې له نورو څخه یې جلا کوي.

په سیاسي ډول د ( پرولتا ریائي دیکتاتوری ) د کارګرانو دیکتاتوري او په اجتماعي ډول د اخلاقو آزادي او د کورني نظام رنګول د دي نظام شعار دي.

که څه هم په ښکاره توګه دا نظام د لومړي نظام سره نه پخلا کیدونکي دي خو د حقیقت له مخې واقعیت داسې ندی.

ځکه د لومړني نظام واکداران هم یهودیان دي او د دوهم نظام واکمن هم. دا خو د حقیقت له مخي وو.

په ښکاره ډول هم دا دواړه نظامونه یو بل ته زیات نژدي شوي دي.

همدا اوسي سرمایه دارانه نظام خپل ځان د کمونیزم په واسطه بشپړه وي لکه د لویو صنعتو نوملي کول.... د کارګرانو د حقوقو قوانین او د کار د ساعتونو تحدید او کمونیزم خپل ځان د سرمایه دارانه نظام څخه په زیاتو ځایونو کې تغذیه کوي لکه برخه وال سیستم، کوچینو ملکیتونو او د کورني نظام جوړوني ته اجازه او نور... دا خو د اقتصادي نژدیوالي مثالونه وه.

په سیاسي میدان کې هم د ۱۹۶۲ کال څخه د کیوبا د پیښي وروسته دوي دواړه په ټولو مسایلو کې یوی مشترکي فیصلي ته رسیدلي دي او

هغه وړ لاسونه يې سره يو کړي دي لکه چې په ۱۹۰۴ کې فرانسي او انګلستان د نورو په مقابل کې يو کړي وو.
او مونږ باور لرو چې د همدغه سياسي يو والي په رڼا کې د نړۍ منطقي په خپلو مينځونو کې ويشي.
او همدا ډول د امريکا متحده ايالاتو او د کمونيزم د بلاک څخه د مرور نوي کمونستي دولت ( چين ) تر مينځ اړيکي په همغه اندازه چې د چين او روسيې تر مينځ اړيکي ترخي دي قوي او خوږي شوي دي.
پدي کې شک نشته چې کمونيزم لا تر اوسه د ځوانۍ په مرحله کې دي يوازي پنځوس کلونه کيږي چې مينځ ته راغلي او پنځوس کلونه د ملتونو په عمر کې ډير لږ دي خو په مقابل کې سرمايه داري د زوړ والي په حال کې ده چې د دي وضعي څخه په طبيعي ډول دا نتيجه ترلاسه کيږي چې : که د دريم پکت خلک حرکت ونکړي نو کمونيزم به په نړيواله سطحه د سرمايه دارانه نظام ځاى ونيسي [1]. مونږ ګورو چې د کمونيزم لمن ورځ ، په ورځ

---

۱ - بايد وويل شي چې کتاب د شلمي پيړۍ په اومه لسيزه کښې ليکل شوي دي او هغه وخت کمونيزم په همدغو موجونو کښې وو خو زه يې د يو ويشتمې پيړۍ په لومړيو ورځو کې [ژباړم]
د کمونيزم يو لوي مرکز ( د شوروي جمهوريتونو اتحاد ) ټوټه ، ټوټه او په کوچنيو هيوادونو وويشل شو.
په مسکو کې کمونستي حزب غير قانوني اعلان او د حزب ټول مايملک چور او په ټولو نوو جوړو شوو هيوادونو کې د کمونيزم هلي ځلي بندي او کمونستي حزب د زاړه تاريخ په زړو پاڼو کې بند شو - دا چې په کمونيزم دا ناڅاپي بدلون ولي دومره په چټکتيا راغی ؟
عوامل او اسباب يې څه وه ؟
ځانګړي بحث او ليکنه غواړي چې که ژوند وه ان شاء الله وبه يې ليکم خو دلته همدومره وايم چې : د الله قهر او غضب په زياتو ظالمانو او له خداى څخه سختو منکرو ژر راغی او د افغان مجاهد ولس قهرماني يې ورته

پراخیږي د ویتنام لاوس او کمبودیا نیول او هلته د کمونیزم مسلطول یې ژوندی نموني دي او کیدای شي چې نور هم مخ په وړاندي ولاړ شي.

**ج } اسلامي پکت**

مونږ ورته د دري یم پکت نوم ورکوو پدی تکل چې ان شاء الله ډیر ژر به د دریم قوت په صفت تبارز وکړي.

او پدی تکل چې فقط پنځوس کلونه وړاندي د نړی ستر قوت وو.

په هغو ورځو کې اسلامي نړی د دنیا هغه یوازیني ستر قوت وو چې د نړی هیڅ قوت ورسره سیالي نشوه کولي او ان شاء الله یو ځل به بیا ډیر ژر همغه ډول لوی قدرت شی - د شمیر ، موقعیت - خامو موادو او پټو خزانو له مخي باید اسلامي نړی د دنیا لومړي مقام ونیسي.

او له هغي ناتواني او بي وسی سره چې نن اسلامي نړی مخ ده د دوه استعماري قوتونو او د دوي د مزدورانو له لاسه ده.

او ان شاء الله د خدای په مرسته - د اسلامي نړی د ځوانانو په ویښیدو او د خدای د ثابت اصل په رڼا کې په اسـلامي نړی پورته او پخواني مجد به یې راژوندي شي د اسـلام دښمنان باید دی ژر راتلونکي ورځي تـه ځان تیار کړي.

یا باید له مونږ سره د جنګ څخه لاس واخلي. مونږ له خپلو کورونو څخه ونه باسي تر څو زمونږ دوستان پاتي شي که نه نو زمونږ دښمنی ته دي تیار شي او هلته به د دوي په هکله د خدای دا حکم عملي کړو.

وَلَكُمْ فِي الْقِصَاصِ حَيَاةٌ يَاأُولِي الْأَلْبَابِ (ای د عقل خاوندانو ستاسې له پاره په بدل اخیستلو کې ژوند دی).

---

بهانه کړه لکه څرنګه یې چې د انګریزي استعمار د ختمولو لپاره همدا اولس لومړني وسیله ګرځولي وه چې په کابل کښې یې له ماتي وروسته په ډهلي او پیښور هم د دوه پیړیو واکمنی او بالاخره په ټوله نړی کې ورکه شوه
[ ژباړن ]

ځيني علماء وائي چې بت ته عبادت كوونكي خلک هم يو ځانګړي پكت دي خو لدي كبله چې هغوی كوم سياسي موجوديت نلري او دا مسايل په سياسي موجوديت اتكاء لري نو ممكن نده چې بت ته عبادت كوونكي د مستقل پكت په صفت وپيژندل شي [ والله اعلم ]

# لومړي فصل

## د اسلامي نړۍ فکري موجودیت

**سریزه :**

د فکري وضعیت بحث او څیړنه کله د اجتماعي اقتصادي او سیاسي حالاتو د بحث او څیړنې سره لازم او ملزوم ګرځي ـ چې دا عناصر یو له بل سره نژدې اړیکي او یو په بل کې اثر لري. خو مونږ هڅه کوو چې یو له بل څخه یې په جلا ډول وڅیړو او هر یو په خپل ځای کې انشاء الله په تفصیل سره بیان کړو.

خو مونږ د فکري حالاتو بحث په نورو ځکه لومړي کړ چې د فکر اهمیت په نورو هومره زیات دي لکه سر یې چې د بدن په نسبت لري.

که څه هم عقیده د جسم لپاره د زړه حیثیت لري خو د عقیدي لاره فکر دي نو لدي کبله د ایمان اجزاء [۱] عبارت دي د زړه له علم او عمل څخه او د علم د حصول ذریعه فکر دي.

د عقیدي بحث مونږ تر ټولو بحثونو وروسته کوو لدي کبله نه چې د اجتماعي بحثونو څخه یې اهمیت لږ دي بلکه لدي امله چې فکري او اجتماعي حالات یو له بل سره اړیکي لري.

که د اسلامي نړۍ فکري حالاتو ته ژوره کتنه وشي نو ویلای شو هغه امت چې د توحید په پاکه عقیده او د قرآن کریم په شریعت یې فکري پوخوالي اخیستي وو اوس په خپل حال ندي پاتي.

---

۱ - د علماوو په نظر کې دا موضوع اختلافي ده ما توریدي علماء چې د حنفي مسلک مشران دي وائي چې اعمال د ایمان اجزاء ندی او نور علماء چې مصنف علیه الرحمه یې پیرو دي وائي چې عمل د ایمان جزء دي بیروني نښه یې پدي ډول څرګندیږي که څوک په مؤمن به څیزونو عقیده ولري خو نور عمل ونکړي - زمونږ په وړاندي مسلمان او د نورو علماوو په وړاندي مسلمان ندي والله اعلم [ ژباړن ]

او په ژوري کتنې سره دا هم څرګندیږي چې هغه یهودي ښامار چې خپل سر یې څه وخت پټ او یا ټیټ کړي وه اوس ګړی په ګړی خپل سر راپورته کوي او د فساد زهر په هر لور شیندي او د فتنو لمبې یې په هره خوا بلې کړي دي.

غربي مسیحیت یهودي زهر وڅښل ـ په هغه لار ولاړ په کومه چې یهود تللي وو او د هغوي په رنګ یې ځان رنګ کړ او د یهودي فلسفو او نظر یو په شکل یې تبارز وکړ.

او ختیځ کمونیزم هم د زهرو زیاته برخه وڅښله چې کینه یې نوره هم زیاته شوه.

وروسته له هغه چې مسیحیت د دوی په لاس خپل اصلي رنګ له لاسه ورکړ نو ټوله دښمني یې اسلام ته متوجه شوه او اسلام هم د عقیدې او فکر په میدان کې په هسکه غاړه ودرید ځکه اسلام رب نازل کړي دي او ساتنه یې هم په خپله غاړه اخیستي ده.

خو په مسلمانانو کې ځینې پردي فکرونه ننوتل که بیرته خپل اصل ته وګرځیدل نو خپل له لاسه ورکړي مجد به ترلاسه کړي او که د سمی لاري یې مخ واړاوه نو لوی خدای به هم د دوي څخه غوره خلک دي کار ته وټاکي.

د لوی خدای په مرسته په راتلونکو پاڼو کې لاندې بحثونه کوو:

۱ } یهودي ښامار خپل زهر خپروي
۲ } په ختیځه اسلامي نړی، کې غربی صلیبی فکر
۳ } په ختیځه اسلامي نړی، کې د یهودي مارکس افکار

والله المستعان وعلیه التکلان ولا حول ولا قوة الا بالله العلی العظیم

## د یهودي ښامار زهر

مونږ نه له هر څه ځانته بلا جوړ وو او نه له هر څه بې پروا کیږو.
ځکه دا دواړه سم کار نه بلکه افراط او تفریط دي. مونږ د دواړو په مینځ کې لار غوره کوو - همدا منځني حالت زما د لیکني اسلوب هم دي او هم زمونږ د ژوند نو په همدي اساس د لوي خدای په مرسته وایو:
دا سمه خبره نده چې ګني د ۱۸۹۷ کال د بال د کانفرانس څخه د یهودي ښامار زهر په خوریدو شوي دي.
او دا هم سمه نده چې ووایو یوازي دوه پیړۍ پخوا هغه وخت د الازهر په خوریدلو شو چې( حاخام لیفا په ۱۵۲۰ - ۱۶۰۹ م کلونو کې بلنه وکړه چې یهودیان دي فلسطین ته ورټول شي.
خبره ډیره پخوا شروع شوي ده.
څوارلس پیړۍ پخوا هغه وخت چې د اسلام وړانګې وځلیدي یهودي زهرو په خوریدو پیل وکړ. کله به چې د دوي د نورو سره جګړه وه نو ورته ویل به یې چې اسلام به راشي او مونږ به پیاوړي شو خو چې اسلام راغي په رښو سترګو یې دروا‌غ وګڼه او ان د مسیحیت د لمر د راختلو په وخت کې دا دښمني ښکاره شوه چې له حضرت عیسی علیه السلام سره یې دښمني پیل کړه.
تاریخي شواهد وائي چې لږ ، تر لږه دوه زره کاله وړاندې یو پټ سازمان جوړ شو چې د عیسی علیه السلام د دین سره یې دښمني شروع کړه چې اسلام راغي دښمنۍ ته یې ورسره دوام ورکړ او دي ډلی کار په پټه کاوه تر هغو چې په ۱۷۱۷ میلادي کال کښې د ماسوني تنظیم په نوم ښکاره د دینونو په ضد هلو ځلو ته دوام ورکړ او هڅه یې وکړه چې له یهودیت څخه باید نور ټول دینونه له مینځه یوسي.
او چې دنیا وال یې په شوم هدف پوه شول نو ځانونه یې ورک او په نوو نومونو یې کار ته دوام ورکړ.

لکه د بناى برث - شهود يهوه - وړانګيز ختيځ ، لوينز - روتاري او کک او داسي نور نومونه.

د اسلام په ضد د يهودي ښامار د مختلفو مرحلو څيړنه په لنډ ډول کوو خو لومړۍ د يهودی ښامار د ځرنګوالي کې ه برخه کې خبري کوو.

لومړي :

ا - د يهودي ښامار صفات :

د دوي صفتونه د خدای د هغه کتاب په رڼا کې څيړو چې هغه د پخوانيو او راتلونکو پيښو په هکله ريښتينی خبري کوی.

ا } سپين سترګی :

وَقَالَتْ الْيَهُودُ يَدُ اللَّه مَغْلُولَةٌ غُلَّتْ أَيْدِيهِمْ وَلُعِنُوا بِمَا قَالُوا [المائده: ۶۴ ]

( يهوديانو ويلي چې د الله لاس تړل شوي دي ، تړل شوي دي لاسونه د هغوي او پر هغوي دې د هغوی د خبرو له کبل لعنت وي ) .

وَقَالَتْ الْيَهُودُ عُزَيْرٌ ابْنُ اللَّه [د سوره التوبه ۳۰ آيت ]

( يهودو وويل : عزيز عليه السلام د خدای زوی دي ) .

قَالُوا أُوذِينَا مِنْ قَبْلِ أَنْ تَأْتِينَا وَمِنْ بَعْدِ مَا جِئْتَنَا [د سوره اعراف ۱۲۹ آيت ]

( ويې ويل : ای موسی ! ستا د راتګ څخه وړاندي هم مونږ ربړول کيدو او ستا له راتګ وروسته هم ربړول کيږو)

فَاذْهَبْ أَنْتَ وَرَبُّكَ فَقَاتِلَا إِنَّا هَاهُنَا قَاعِدُونَ [د سوره المائده ۲۴ آيت ]

( ته دی د خپل خدای سره ولاړه شه دواړه وجنګيږۍ مونږ به دلته درته ناست يو ( د نتيجی څار به کوو )

۲ - فتنی او فساد :

كُلَّمَا أَوْقَدُوا نَارًا لِلْحَرْبِ أَطْفَأَهَا اللَّهُ وَيَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ فَسَادًا وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُفْسِدِينَ [د سوره المائده ۶۴ آيت ]

( کله هم چې د جنګ اور بل کړي الله يې مړ کوي . دوي هميش په ځمکه کې د فساد لپاره هلي ځلي کوي . الله پاک فساد کوونکې نه خوښوی ) .

۳ - وژنه ، خیانت او تېګې :

فَبِمَا نَقْضِهِمْ مِيثَاقَهُمْ وَكُفْرِهِمْ بِآيَاتِ اللَّهِ وَقَتْلِهِمُ الْأَنْبِيَاءَ بِغَيْرِ حَقٍّ وَقَوْلِهِمْ قُلُوبُنَا غُلْفٌ بَلْ طَبَعَ اللَّهُ عَلَيْهَا بِكُفْرِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُونَ إِلَّا قَلِيلًا [د سوره النساء ۱۵۵ آیت ]

( د دوي د تړونونو د ماتولو او د خدای د آیتونو د نه منلو او په ناروا د پیغمبرانو د وژلو او پدی خبره چې ویل به یې زمونږ زړونه په پردو کې پټ دی ( مونږ په عذاب کړل ) بلکی الله پاک د هغوی د کفر له کبله د هغوی پر زړونو مهر لګوي نو پرته له ډیرو لږو خلکو نور یې ایمان نه راوړي )

إِنَّ الَّذِينَ يَكْفُرُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ وَيَقْتُلُونَ النَّبِيِّينَ بِغَيْرِ حَقٍّ وَيَقْتُلُونَ الَّذِينَ يَأْمُرُونَ بِالْقِسْطِ مِنَ النَّاسِ فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ [د سوره آل عمران ۲۱ آیت ]

( بی له شکه هغه کسان چې د الله له آیاتونو څخه منکریږي او په نا حقه پیغمبران وژنی او هغه خلک وژني چې دوی ته د انصاف په لور بلنه ورکوی نو د دردناک عذاب زیري پری وکړه ) .

فَبِمَا نَقْضِهِمْ مِيثَاقَهُمْ لَعَنَّاهُمْ وَجَعَلْنَا قُلُوبَهُمْ قَاسِيَةً يُحَرِّفُونَ الْكَلِمَ عَنْ مَوَاضِعِهِ وَنَسُوا حَظًّا مِمَّا ذُكِّرُوا بِهِ وَلَا تَزَالُ تَطَّلِعُ عَلَى خَائِنَةٍ مِنْهُمْ [د سوره المائده ۱۳ آیت ]

( د دوی د تړونونو د ماتولو له کبله پری مونږ لعنت وکړ او د هغوي زړونه مو سخت وګرځول هغوي خبری له خپل اصلی مفهوم نه په بل لوری اړوی ته به همیش د هغوي له خیانتونو څخه خبریږی !)

هوا پدوی کې هم د خېر ډیر لږ خلک شته دی

الَّذِينَ عَاهَدْتَ مِنْهُمْ ثُمَّ يَنْقُضُونَ عَهْدَهُمْ فِي كُلِّ مَرَّةٍ وَهُمْ لَا يَتَّقُونَ [د سوره انفال ۵۶ آیت ]

( هغه کسان چې تا ورسره تړون کړي بیا دوی هر ځل تړون ماتوی او هیڅ باک یې نه لری )

أَوَكُلَّمَا عَاهَدُوا عَهْدًا نَبَذَهُ فَرِيقٌ مِنْهُمْ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ [البقره : ۱۰۰ ]

( ایا کله هم چې هغوی کوم تړون وتړی نو د هغوی یوه ډله یې شاته وغورځوی ؟ بلکه د هغوی ډیر خلک ایمان نه راوړی ) .

۴ - ډار ، تکبر او سختوالی :

قَالُوا يَامُوسَى إِنَّ فِيهَا قَوْمًا جَبَّارِينَ وَإِنَّا لَنْ نَدْخُلَهَا حَتَّى يَخْرُجُوا مِنْهَا فَإِنْ يَخْرُجُوا مِنْهَا فَإِنَّا دَاخِلُونَ [د سوره المائده ۲۴ آیت ]

( دوی وویل : ای موسی پدی ښار کې ظالم قوم اوسیږی او مونږ به تر څو چې دوی تری نوی وتلی ښار ته داخل نشو) .

لَأَنْتُمْ أَشَدُّ رَهْبَةً فِي صُدُورِهِمْ مِنْ اللَّهِ [د سوره حشر ۱۳ آیت ]

( دا پخه خبره ده چې د هغوی په زړونو کې د الله په نسبت له تاسو نه یې ډار ډیر دی )

لَا يُقَاتِلُونَكُمْ جَمِيعًا إِلَّا فِي قُرًى مُحَصَّنَةٍ أَوْ مِنْ وَرَاءِ جُدُرٍ [د سوره حشر ۱۴ آیت ]

دوی ( یهود ) ټول له تاسی سره نه جنګیږی مګر هغه وخت به وجنګیږی چې په کلکو کلکو ( مورچلو ) کې ناست وی او یا د دیوالونو تر شاه وي میدان ته یې نور وړاندی کړې وی )

ثُمَّ قَسَتْ قُلُوبُكُمْ مِنْ بَعْدِ ذَلِكَ فَهِيَ كَالْحِجَارَةِ أَوْ أَشَدُّ قَسْوَةً [د سوره البقره ۷۴ آیت ]

( بیا ستاسی زړونه لدی وروسته د ډبری په شان سخت شول بلکی له هغی نه هم ډیر)

وَقَالُوا لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ إِلَّا أَيَّامًا مَعْدُودَةً [د سوره البقره ۸۰ آیت ]

( دوی وایي : مونږ به بی له څو ورځو څخه نور د [ دوزخ ] اور ونه سوزوی )

أَفَكُلَّمَا جَاءَكُمْ رَسُولٌ بِمَا لَا تَهْوَى أَنفُسُكُمْ اسْتَكْبَرْتُمْ فَفَرِيقًا كَذَّبْتُمْ وَفَرِيقًا تَقْتُلُونَ [د سوره البقره ۸۲ آیت ]

( ایا کله هم چې پیغمبر ستاسی د خواهشاتو مخالف احکام راوړی ، تاسی تکبر کوی .؟ ځینی پیغمبران مو درواغجن وګڼل او ځینی وژنی ) .

وَقَالُوا لَنْ يَدْخُلَ الْجَنَّةَ إِلَّا مَنْ كَانَ هُودًا أَوْ نَصَارَى تِلْكَ أَمَانِيُّهُمْ قُلْ هَاتُوا بُرْهَانَكُمْ إِنْ كُنتُمْ صَادِقِينَ [د سوره البقره ۱۹۱ آیت ]

( دوی ویل : جنت ته به بی له یهودو او نصاراً ووبل څوک لاړ نشی دا یې د زړه هیله ده ( ای محمده ) ورته ووایه دلیل مو راوړی که تاسی ریښتینی یاست

۵ - د خدای له دین څخه یې مخ واړاوه نو د ذلت سره مخ شول :

سَلْ بَنِي إِسْرَائِيلَ كَمْ آتَيْنَاهُمْ مِنْ آيَةٍ بَيِّنَةٍوَمَنْ يُبَدِّلْ نِعْمَةَ اللَّهِ مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَتْهُ فَإِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ [د سوره البقره ۲۱۱ آیت ]

( له بنی اسرائیلو وپوښته چې څومره زیات دلایل مو ورکړل او څوک چې د خدای نعمت له ورتګ څخه یې وروسته بدل کړی ( نو پوه دی شی ) چې د الله عذاب خورا سخت دی ) .

وَإِذْ وَاعَدْنَا مُوسَى أَرْبَعِينَ لَيْلَةً ثُمَّ اتَّخَذْتُمْ الْعِجْلَ مِنْ بَعْدِهِ وَأَنْتُمْ ظَالِمُونَ [د سوره البقره ۵۱ آیت ]

( هغه وخت یاد کړه ) چې مونږ د موسی سره ۴۰ شپې وعده کیښوده بیا تاسی د هغه په غیاب کښې خوسی په خدائی ونیوه . ( عبادت مو ورته وکړ ) او تاسی تیری کوونکی یاست ) .

ضُرِبَتْ عَلَيْهِمْ الذِّلَّةُ أَيْنَ مَا ثُقِفُوا إِلَّا بِحَبْلٍ مِنْ اللَّهِ وَحَبْلٍ مِنْ النَّاسِ وَبَاءُوا بِغَضَبٍ مِنْ اللَّهِ وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمْ الْمَسْكَنَةُ [د سوره الاعمران ۱۱۲ آیت ]

( ذلت پری مسلط شو هر چیری چې هغوی ومیندل شی پرته له هغه وخت چې د الله په رسۍ منګولی ولګوی او یا د خلکو په پړی ځان وتړي او د الله له لوري په غضب اخته شول او بی وسی پری وتپل شوه ) .

## د یهودی ښامار مرحلی

مونږ پدی پانو کې له اسلام سره د یهودو دښمنی څیړو ځکه همدا زمونږ د څیړنی موضوع ده که نه نو د دوی له عیسی علیه السلام سره هم خورا نا دودی کړی دی .

کله چې محمد صلی الله علیه وسلم پیغمبر شو او دوی اټکل کړی وو چې د عیسی علیه السلام نه پس پیغمبر به لدوی څخه وی او دوی به همیش د نورو سره د جګړی په صورت کې د وروستی پیغمبر مرسته او کومک هغوی ته یاداوه

خو چې وروستی پیغمبر د اسحاق علیه السلام د کورنۍ پر ځای د اسماعیل علیه السلام د کورنۍ څخه وټاکل شو نو دوی منکر او کافران شول

په لومړیو وختونو کې یې مختلفۍ هلی ځلی وکړی چې ځان تری خلاص کړی یو ځل یې کوښښ وکړ چې په زهرو یې مړ کړی خو الله جل جلاله هغه لدی څخه وژغوره چې د زهرجن پسه غوښه وخوری بل ځل یې هڅه وکړه چې لویه ډبره د ده په سر هغه وخت راوغورزوی چې هغه مبارک د یهودانو په مینځ کې یوه دیوال ته تکیه کړی وه خو الله جل جلاله دا ځل هم بچ کړ بل ځل یې ټول دښمنان راټول او ټول یې د اسلام په ضد په یو صف کې ودرول چې د احزابو په نوم جګړه پیل شوه پدی جګړه کې په مسلمانانو خورا زیات هیبت راغی.

إِذْ جَاءُوكُمْ مِنْ فَوْقِكُمْ وَمِنْ أَسْفَلَ مِنْكُمْ وَإِذْ زَاغَتْ الْأَبْصَارُ وَبَلَغَتْ الْقُلُوبُ الْحَنَاجِرَ وَتَظُنُّونَ بِاللَّهِ الظُّنُونَ() هُنَالِكَ ابْتُلِيَ الْمُؤْمِنُونَ وَزُلْزِلُوا زِلْزَالًا شَدِيدًا [ د سوره الاحزاب ۱۰-۱۱ آیتونه ]

(کله چې هغوی له پاسه او له لاندې پر تاسې یرغل وکړ. کله چې سترګې له وېرې تېښتې وختلې، زړونه خولې ته راغلل. او تاسې د الله په باب راز راز ګومانونه وکړل. په هغه وخت کې مؤمنان ښه وازمایل شول او سخت ولړزول شول)

نو لدی وروسته تبعید شول :

۱ : بنی قینقاع : هغه وخت تبعید شول چې خیانت ته یې ملا وتړله او یوه مسلمانه ښځه یې بی ستره کړه او چا یې چې حرمت ساته هغه یې وواژه.

۲ : بنی نضیر : دوی هم هغه وخت تبعید شول چې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم دیوال ته تکیه کړی وه او دوی هڅه وکړه چې د پاسه پری تیږه راوغورځوی

۳ : بنی قریظه" : په پای کې چې دوی د کافرانو سره تړون وکړ او د احزاب جنګ یې د اسلام په ضد پیل کړ نو د جنګ نه وروسته چې کافران ولاړل رسول اکرم صلی الله علیه وسلم مسلمانانو ته یې وویل : څوک چې په خدای او د آخرت په ورځ ایمان لری نو باید د مازدیګر لمونځ بنی قریظه ته ورسوی .

سړی یې ووژل شو ښځې او کوچنیان یې غلامان شول .

لوی خدای د دوی په هکله لاندی آیتونه نازل کړل :

وَأَنْزَلَ الَّذِينَ ظَاهَرُوهُمْ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ مِنْ صَيَاصِيهِمْ وَقَذَفَ فِي قُلُوبِهِمُ الرُّعْبَ فَرِيقًا تَقْتُلُونَ وَتَأْسِرُونَ فَرِيقًا()وَأَوْرَثَكُمْ أَرْضَهُمْ وَدِيَارَهُمْ وَأَمْوَالَهُمْ وَأَرْضًا لَمْ تَطَئُوهَا وَكَانَ اللَّهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرًا [ د سوره الاحزاب ۲۶- ۲۷ آیتونه ]

( او الله هغه اهل کتاب چې د احزابو ملاتړ یې کړی وو له خپلو کلاګانو څخه راښکته او په زړونو کې یې ډار ور واچاوو ځینی یې تاسی وژنئ او ځینی یې بندی کوی د هغوی ځمکی ، کورونه او مالونه او هغه ځمکی یې چې لا تر اوسه مو قدم پری ندی ایښی ستاسی میراث وګرځاوو او الله پر هر شی پیاوړی دی )

الله جل جلاله د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په ژوند کې عربی وچه لدوی څخه پاکه کړه رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د رحلت څخه یوه ورځ مخکې وفرمایل : په عربی وچه کې دوه دینونه نشی یو ځای کیدای .

دوی هم کینه په زړونو کې پټه او د څه وخت لپاره خپل سر ټیټ کړ ترڅو یې چې د حضرت عثمان رضی الله عنه په وخت کې سر راپوته او په دسیسو یې پیل وکړ او حضرت عثمان رضی الله عنه یې پداسی حال کې وواژه چې په خوله یې روژه وه او د قرآن کریم تلاوت یې کاوو .

بیا یې زهر نور هم یو ی خوا او بلی خوا وشیندل چې د حضرت علی کرم الله وجهه او حضرت معاویه رضی الله عنه تر مینځ یې د اور لمبی پو. ته کړی

او د دی فتنو په نتیجه کې خوارجو د حضرت علی کرم الله وجهه او د هغه د ملګرو او د حضرت معاویه رضی الله عنه او دهغه د ملګرو د کافریدلو اعلان وکړ

بیا د شیعه ډلی خلکو د یهودو ځینی عقیدی خپلی کړی حضرت علی یې خدای وګاڼه لکه څرنګه چې پخوا د یهودو په واسطه حضرت عیسی علیه السلام ته خدای ویل شوی وو

په مسلمانانو کې ډلی زیاتی شوی نو دوی ته هم زمینه په لاس ورغله چې د مسلمانانو په مینځ کې د فکری او عقیدوی اختلاف لپاره لمن ووهی په یوولسمه هجری پیړۍ کې ماسونی ډلی نور غولوونکی شعار ( ورورولی ، عدالت ، او مساوات ) پورته کړ هدف یې دا وو چې له یهودیانو څخه پرته په نور ټول بشر خپله کینه سړه کړی نور ټول انسانیت ته خره ووائی کله به چې یو خر له مینځه ولاړ په بل خره به سواره شول.

هغه څوک به چې د دی تنظیم غړی شو په لومړیو وختونو کې به یې د هغه په واسطه بی لدی چې حقیقت ورته څرګند کړی د فساد زهر خورول خو کله به چې یو غړی د اعتماد وړ او د غړیتوب دری دیرشمی درجی ته به ورسید نو لاندېنی تړون به یې پری لاس لیک کاوو.

پوښتنه : په څه دی سوګند کړی دی ؟

ځواب : په تورات.

پوښتنه : بی له تورات څخه بل کتاب پیژنی ؟

ځواب : هو ! قرآن او انجیل هم شته د دوی منونکی د ایمان او بشریت څخه وتلی دی

پوښتنه : آیا پدی دواړو کتابونو ایمان لری ؟

ځواب : نه : یوازې په توارت ایمان لرم - دا هغه صحیح کتاب دی چې په موسی علیه السلام نازل شوی دی.

پوښتنه :د اسلام او مسیحیت په هکله ستا نظر څه دی ؟

ځواب : اسلام او مسیحیت له تورات څخه ایستل شوی .

پوښتنه :اصل غوره دی که فرعه ؟
ځواب : دا پخه خبره ده چې اصل غوره دی.
ماسونیت د خپلې کرغیړنې څیرې لاندې هڅه وکړه چې خلک د خپلو اوچتو اصولو په هکله شکمن او متردد کړي ـ د دوی د فاسد فکر منلو ته تیار او یا لږ تر لږه ورنږدې شي او د ( روسو او وولتر ) په شان علماوو يې ملا وتړله چې د فرانسې د انقلاب لپاره لاره هواره او انقلاب يې ګړندی کړ.
د کارل مرد خای مارکس ، اسحق مونمر ، شبشو ، لیفي داریون او شیف ) په ډول علماء ورسره ملګرې شول چې لومړنی يې د کمونیزم اساسي کرښې ولیکلې او نورو تفصیل ورکړ او عملي جامه یهودي ( اولیاتوف ) چې په لینن سره يې شهرت موندلی وو ورواغوسته دا باید ووایو چې پورتني علماء ټول یهودیان [1] وو.
د مدحت باشا او مصطفی کمال چې په اتاترک [2] مشهور دی په شان خلک يې د خپل حزب ( یو والي او پرمختګ ) سره د دوی ملګری او د دوی لپاره يې لار هواره او بیا يې عثماني خلافت له مینځه یوړ ترڅو یهودیانو ته زمینه برابره کړي چې د قسطنطینې په لار فلسطین ونیسي.

---

۱ - دا چې یهودیان په روسیه کې څومره نفوذ لري له لاندې معلوماتو څخه ښه څرګندیږي
که څه هم یهودیان په سلو کې له نیم فی صد څخه هم کم دي یعنې په ۲۵۵ میلیونو کې یوازې دوه میلیونه دي خو پکتا خرسچف د دوی رول په روسیه کښې داسې بیان کړی
د ټولو وکیلانو ۴,۱ فیصده یهود دي د لیکوالانو ۱۴ ٪ د خبر نګارانو او موسیقي پوهانو ۲۴ ٪ د هنرمندانو ۶۳ ٪ د دولت ۷۶۴۷ لوړ رتبه چوکۍ د یهودیانو سره دي او په روسیه کې ( ۴۴۷۰۰۰) اقتصاد پوهان یهودیان دي.
۲ - اتاترک ترکي کلمه ده چې ( اتا ) د قائد او پلار معنا لري یعنې د ترکي پلار یا د ترکي قائد

د هنر په نوم ماسونیت خپل زهر هومره خپاره کړل چې انسانان یې د حیوانیت ښکته مرحلې ته ورسول په جنسی فاسدو غریزو کې یې هومره غوټه کړل چې د هنر په نوم د عورت ښکاره کول افتخار وګڼل شو او د تلویزیون او ډرامې په پرده د جنسی افعالو اجراء یو عادی عمل وګرځید [۱].

---

۱- د ریاض ښځه خپریدونکې الدعوه" نومې مجلې د ۱۳۹۸ کال په ۶۳۳ ګڼه د محرم په میاشت کښې د ( اسلام دفاع به څوک وکړی ؟ ) عنوان لاندې لیکې چې ځوانان مو د اخلاقو د فساد او ورانوالې ښځه وژغورۍ ځکه هغه مرکزونه چې د ځوانانو د تفریحی پروګرامونو په نوم جوړ شوی دی هغه د اخلاقو د فاسدولو مرکزونه دی .
ځکه د شپې له خوا په کې داسې فلمونه ښوول کیږی چې روغ عقل هیڅکله دا نشی منلی چې د عربستان سعودی په شان یو مملکت کې چې ځان د اسلام مرکز ګڼی- او ځوانان یې باید په اسلام مین او د اسلام مجاهدین وی دا ډول فلم وښوول شی هغه وروستنی فلم چې په ریاض کې د ځوانانو د سپورت په یو مرکز کې پدی ورځو کښې وښوول شو د ( ګرمو پیغلو ) په نوم رنګه امریکائی فلم وه دا فلم په ۲۱ \ ۱۲ \ ۱۳۹۸ هـ ق د پنج شنبې په شپه وښوول شو ، دا فلم هومره پریوتی فلم وه چې د سالم عقل خاوند نشي کولای چې د فلم کیسه تشریح کړی خالص جنسی فلم وه چې د سړی او ښځې جنسی روابط یې لوڅ بربنډ ښودلی وه . لدی کبله چې مراجعین یې زښت زیات وه نو د یو ټکټ قیمت سل ریالو ته پورته ولاړ.
د ریاض نه خپریدونکې الریاض ، ورځپانې ۲۸ \ ۱۲ \ ۱۳۹۸ هـ ق او ۱۸ \ ۱۱ \ ۱۹۷۸ م کال په ۴۰۸۶ ګڼه کښې لیکلې چې د مصر نه خپریدونکې مجلې ( حواء النساء المصریه ) په ۱۱۵۴ ګڼه کې د ۱۹۷۸ م کال لپاره د لمبانوی لباس اعلان خپور کړ چې پدی لباس باندی د اسرائیلو شعار ( شپږ ستوری ) په څرګند ډول ښکاریده .

او دا کومه د حیرانتیا خبره ځکه نده چې دوی ته درېیم پروتوکول وائي ( زمونږ ګتی پدی کښی دی چې ټول ملتونه پرته له یهودو څخه له مینځه ولاړ شی )

د لیکوالو چاپولو او خبرنګارو په هکله یې هم زهر وشیندل تاریخ یې مسخ کړ او حقائق یې په بل رنګ واړول او غواړی چې هغه خرافات چې په تورات او تلمود کې یې په خپلو لاسونو لیکلی دی هم په دی حقایقو کې ورداخل کړی.

د اقتصاد په برخه کې یې هم زهر ورګډ کړل ( سود ) یې قانونی وګاڼه اقتصاد ته یې یوازې مادی رنګ ورکړ او نور ټول معنوی ملحوظات یې له نظره وغورځول

د سیاست په ډګر کې یې هم باطلی رای وړاندی او فاسد فکرونه یې وروزل چې په نتیجه کې یې انسانیت د خپل لوړ او اوچت مقام څخه لاندی راوغورځاوه.

او په آزادۍ او دیموکراسی غولوونکو نومونو او مختلفو احزابو یې خلک په جلا ، جلا لارو روان کړل.

او همدا ډول....

د ماسونیت د نفوذ اندازه لدی څخه ښه معلومېږی چې د مسلمانانو ځیني[1] مشران یې غړی شوی وو او همدا ډول د اسلامي مملکتونو ځینو مشرانو د دوی د پروګرامونو سره خورا زیات ملاتړ وکړ.

---

[1]- دکتور محمد علی الزغبی په خپل کتاب د ماسونیت حقیقت کې لاندی دوه لیکونه نشر کړی دی.

ا } هغه آزاد ځوانان او پوهان چې نن د مصر په اسکندریه کې د عربی نړۍ د لوی مجلس لپاره د مشر استاد د ټاکلو لپاره راټول شوی دی د مصر د نوی مبارک انقلاب څخه خپل ملاتړ اعلانوی او ټینګار کوی چې د انقلاب مشران هغه اصول چې دوی پری ایمان لری په پوره ډول عملی کړی ستاسی هغه ملاتړ چې د ماسونیت څخه مو کړی دی د ماسونیت ملګری یې په مصر او عربی ټولنه کې ډیر کړی دی له الله څخه هیله من یو چې د مصر

د نصاراوو په برخه کې مانسونيت هومره قدم واخيست چې اعلان يې خپور کړ چې يهوديان د حضرت عيسی په وژلو کې برخه من نه وو نو لدی وروسته کاتوليکی کليسا اجازه ورکړه چې خلک د ماسونی تنظيم غړی شی او پخوا ئې منع کړی وو

---

جمهوريت وساتی ، او تاسی ته توان درکړی چې وطن ته نور خير هم ورسوی او ستاسی د لوړی لورينی په سيوری کښې ماسونيت پرمخ تگ وکړی .
ب } د ماسونيت استاد ښاغلی طه مخلوف !

له ښو هيلو او سلام نه پس :

ستاسی د هغه لوی خدمت څخه مننه چې ستاسی د هلو ځلو په نتيجه کښې نوی قانون مينځ ته راغی دا قانون ستاسی د پخی ارادی له کبله له ټولو قوانينو پورته او ټولو ته مرجع ده تاسی ته مبارکی درکوم او له الله څخه هيله من يم چې مونږ ټولو ته د هغه څه توان راکړی چې زمونږ د گران وطن په گټه وی تل پاتی دی وی مصر.
ج } د کويت څخه خپريدونکی المجتمع نومی مجلی د ۱۹۷۸\۱۱\۱۷ په ۴۱۹ گڼه کې ليکلی :
د دښمن اسرائيلو راديو نن د جمعی په ورځی ۲۵ د ذوالقعدی ۱۳۹۸ کال يو خبر خپور کړ چې په راتلونکی دسمبر کې به په قاهره او بيت المقدس کښې د هغو روتاری کلبونو چې په مصر ، اسرائيلو ، المغرب ، تونس ، الجزائر ، بحرين کويت او قبرص کې موجود دی - په برخه اخيستلو سره يو جلسه جوړيږی. پدی کانفرانس کې به د مصر او اسرائيلو تر مينځ په سوله بحث وشی او هم به وڅيړل شي چې په منځنی ختيځ کې روتاری کلبونه څنگه يو له بل سره هر همکاری کولای شي.

## په ختیځه اسلامي نړۍ کې غربي صلیبي فکر

پدې کې څه خبره نشته چې د اسلام خپریدل د مسیحیت لپاره خطر شو په ډیرو ځایونو کې یې د هغه مشرۍ ورختمه کړه ، د روم امپراطورۍ د اسلامي غورځنګ په وړاندې ماتې وخوړه قسطنطنیه او ورپسې ستر مرکزونه د مسلمانانو په لاس ورغلل ان تردې چې د اسلام بریمنو لښکرو د اروپا په زړه کې د ( ویانا ) دروازې ورو ټکولې دې سوبو له غربیانو سره د اسلام په مقابل کې دښمنی پیدا کړه او یهودیانو او د هغوی لاسو پوڅو ، نمایندګانو د مسلمانانو او مسیحیانو په مینځ کې د دښمنۍ اور لاتیز ترڅو چې د صلیبي جنګونو د پیښیدو سبب وګرځید .

د صلیبي جنګونو سره جوخت په ختیځه اسلامي نړۍ کې فکري جنګ هم شروع او مستشرقینو[1] په اسلامي عقیده او د اسلام په لومړنیو مصادرو چې قرآن او سنت دی د شک او ګومان پیدا کولو لپاره هڅه وکړه ګني چې دا د الله له لورې نه بلکه محمد صلی الله علیه وسلم له ځانه جوړ کړی دی .

ځینو یې دا کار قصدا د دې لپاره وکړ چې اسلام ته تاوان ورسوي او ځینو یې د ناپوهۍ له کبله وکړ چې په عربي ژبه او د شرعي علومو په مصطلحاتو سم نه پوهیدل .

د مستشرقینو کتابونه ژباړه او په ختیځه اسلامي نړۍ کې خپاره او هغو زده کړو چې د علمي بورسونو په دوران کې یې د دوی له لاسه د زهرو جامونه څښلي وو او د دوی عقلونه یې تر اغیزې لاندې راوستلي وو ، له ځان سره یې د دې لپاره راوړل چې ګڼي دا علمي حقایق دي او دوی کولای شي چې د دې علمي معلوماتو په واسطه خپلې سیاسي خبرې او لیکنې علمي ښکاره کړای شي .

---

[1]- هغو علماوو ته چې د شرق او شرقي علومو په هکله معلومات لري مستشرقین وائي غرب د دې کار لپاره ځیني خلک وروزل چې د شرق له ټولو عاداتو او ژبو سره د شرقیانو په شان بلکه لدوی څخه هم زیات اشنا وو .

مسیحي مبلغینو د مستشرقینو څخه وروسته او په ځینو ځایونو کې د دوی سره جوخت د کینې او دښمنۍ زهر ښکاره او هڅه وکړه چې مسلمانان د خپلې عقیدې په هکله شکمن کړي تر څو اسلام ته شاه او مسیحیت قبول کړي.
او پدې وروستیو وختونو کې یې ملا وتړله چې له اسلام څخه یې بیزاره کړي خو ضرورت یې نشته چې مسیحیت[1] قبول کړي ځکه پدې ترتیب هم اصل هدف لاس ته راځي.
او اوس اوس خو یې هڅه وکړه چې د اسلام څخه وتل او د اسلام څخه لرې کیدل تهذیب او تمدن وګڼي او د اجتماعي بدلون او تمدن او تهذیب په ښکلو نومونو سره خلک ورته رامات کړي.
صلیبي فکر په اسلامي نړۍ کې د پرمخ تګ لپاره همدغه خاص اصطلاحات استعمالوي چې ناپوه ملک د مجبوریت له کبله ورځي او دا اوس یوه عامه بلا ګرځیدلې ده.
د دې سره سره لدې څخه یې هم مخ ندی اړولی چې مسلمانانو د اسلام څخه بیرون او په مسیحیت کې یې داخل کړي ډیری اسلامي خاوری شته چې همدا اوس د مسیحیت د خطر لاندې دي بالخصوص په هغو ځایونو

---

[1]- د مسیحیانو مشر زویمر په بیت المقدس کې د خپلې بیانیې په ضمن کې وویل : ای مسیحي دولتونو ستاسي وظیفه په هغو ځایونو کې چې محمدي دین هلته موجود دی دا نده چې خلک د اسلام څخه بیرون او عیسائیان یې کړۍ ځکه دا هم د دوی عزت او احترام دی بلکه ستاسي دنده دا ده چې د اسلام څخه بې بیزاره او داسې خلک یې وګرځوۍ چې د خدای سره یې هیڅ اړیکې نه وي : که تاسې داسې نسل جوړ کړای شې چې نه یې د خدای سره اړیکې وي او نه یې د پیدا کولو هڅه وکړي ، له اسلام څخه مو بیرون او په مسیحیت کې مو داخل نکړل نو بالاخره داسې نسل مو وروزه چې زمونږ د نقشو د عملي کولو لپاره به هر وخت تیار وي د لوړتیا په هکله به هڅه کوي آرامتیا او بې غمي به له هر څه زیاته خوښوي او په دنیا کې به بې د جنسي شهوت د پوره کولو څخه بله دنده نه پیژني.

کې چې عیسائیت نوی علم د یوی غوښوونکی وسلې په صفت استعمالوی چې د مسلمانانو عقیده ورخرابه او په عیسائی دین کې یې داخل کړی.
او همدا ډول په هغو اسلامي منطقو کې چې هلته فقر او ناتوانی حاکمه ده مال او روپۍ د یوی مهمی وسلې په صفت بی دریغه په کار اچوی[1].
او همدا ډول د زیاتو اسلامي دولتونو حاکمه طبقه د صلیبی دولتونو سره تړونونه لری چې د یهودیت او نصرانیت د پرمخ تګ لپاره به لار آواروی او کومک به ورسره کوی د دی ستر کار په مقابل کښد دوی تاج او تخت د دوی په لاس کې پاتی کیږی او د دوی اردو ، پولیس استخبارتی قواوی د دا ډول ادارو د ساتنی لپاره هلی ځلی کوی چې هغوی په پوره اطمینان د یهودی کولو او عیسائی کولو پروژی مخ په وړاندی بوځی.
دا امنیتی قواوی پدی برخه کې د هغو بیرنیو لښکرو څخه چې یهودی او عیسائی ملکونه یې لری او کله ، کله یې ځینو اسلامي دولتونو ته لیږی ښه خدمت په پوره آزادۍ او پوره وحشت سره کوی . نو لدی کبله مونږ وینو چې استعماری دولتونه ډیر ځل د ځینو اسلامي دولتونو د اردو چې د اسلام لپاره هیڅ خدمت نه کوی د پیاوړتیا لپاره خورا لیوال وی.
د دی لپاره چې وپوهیږو چې صلیبی فکر په اسلامي خاوره کښځومره اغیزه کړی ده نو باید لاندی مهم معلومات په غور سره ولولو.

---

[1]- هغه څه چې عیسائیت په اندونیزیا کښې کړی دی لدی پورته دی چې پدی حاشیه کې ځای شی عیسائیانو په مختلفو وسیلو بالخصوص د مال په مصرف سره تقریباً لس میلیونه خلک عیسایان کړل . په اسلامی نړۍ کښې داسی ځایونه شته چې عیسایان پکښی مال او پیسی د ویالو په اندازه مصرفوی خو نه پوهیږو چې مسلمانان مال او ثروت د اسلام نه د دفاع په خاطر ولی نه استعمالوی ؟

**۱ } له دين څخه د بيزارۍ ( سيکوليريزم ) فکر خپرېدل**

دا فکر د يهوديانو له خوا پيدا شو چې په اروپا کې يې د کليسا اغيزه ختمه کړه

او ماسونيت موقع غنيمت وګڼله او د فکري حلقو په مينځ کې يې د کليسا اثر هومره را ښکته کړ چې د نابودۍ خواته نژدې شوه او د دين څخه د بيزارۍ مشهور غږ ( هغه چې د پاچا دي هغه به د پاچا وي او چې د خدای دي د خدای وي ) يې پورته کړ تر څو چې د کليسا اثر يوازې د ديوالونو په مينځ کښېاتي او ټولنې ته وړاندي نشي

دې کار ته په نننۍ اصطلاح د ( دين او دولت جلا والي ) نوم ورکړ شو چې د فرانسې د انقلاب په دوران کې تری داسې تعبير کيده ( آخرني پاچا د آخرني ملا د کولمو په کړۍ اعدام کړئ ) صليبيانو دا فکر د کتاب او هغو زده کړو په واسطه چې د غربي پوهنتونو کې يې لوړې زده کړې کولې اسلامي خاورې ته رادننه کړ هسې خو جومات په اسلامي نړۍ کې هغه رول نه درلود چې کليسا په عيسائي ټولنه کې درلود ځکه نه يې د خلکو څخه حقوق اخيستې شو او نه يې د خلکو د ارادو د واک دعوه کولای شوه او نه يې دا حق تر لاسه کړی وو چې ځيني شيان حلال او يا ځيني حرام کړي او نه يې ملايان هومره پرېوتې بد اخلاقه او بدکاره شوی وو لکه د کليسا راهبانو چې ورسره مخ وو.

او نه جومات په سياست کې هومره زول لوبولی دی لکه څنګه چې کليسا په ټولنه کې لوبولی دی چې د خلکو د زړونو او ضميرونو د حالاتو د معلومولو لپاره يې د پلټنې او څارنې هيئتونه جوړ کړي وو.

په ډېر تاسف سره بايد ووايو چې د اسلامي نړۍ واکمنه طبقه تل هڅې کوي چې دين د سياست څخه جلا او تل زيار باسي چې په ټولنه او اجتماع کې داسې څه ووائي او وکړي چې ( مرتجع او ديندراه ) ورته ونه ويل شي

د غم خبره خو لا دا ده چې د دين څخه د بي زارۍ فکر د ژوند اصل د خبرو متکا او د هر کار اساس وګرځي ، سره له دې چې نومونه به يې

اسلامي وی خو په غیر اسلامي کار به هیڅ عار نه محسوسوی ، ان تر دی چې د دین څخه آزاد خلک په فکری او اجتماعي برخو کې د ( استاد ، قهرمان او ستوری ) لقب وګټی تر څو د ځوانانو او راتلونکی نسل په وړاندی د احترام او منلو وړ مثال وګرځی او د ژوند کیسه یې د خلکو د خوښی وسیله وګرځی.

نو ځکه مونږ باید وپوهیږو چې ولی مصطفی کمال اتاترک هومره [1] مشهور شو چې ان تر نن یې ځیني خلک خپل فکری لارښود ګڼی.

او ولی ( طه حسین ) هومره مشهور شو چې په عربی ادب کې یې د داسی استاد لقب وګاټه چې ګڼی په عربی نړی کې د ده په شان څوک نشته ، سره لدی چې هغه یو بی دینه او له دین څخه بی زاره انسان وو چې د یهودی او ماسونی استادانو فکر یې اسلامي نړی، ته وړاندی کاوو.

او سره لدی چې د ده په وخت کې عربی نړی، له ده څخه خورا تکړه او غوره ادیبان لکه مصطفی صادق الرافعی او عباس محمود العقاد او داسی نور لرل.

او ولی د مصطفی کمال اتاتورک شاګردان په نوره اسلامي نړی، کې مشهور شول ؟ سره لدی چې د دوی خیانتونه څرګند او هومره ښکاره وو چې د مصطفی کمال اتاتورک د خیانت څخه هم زیات وه.

---

۱ : ایګل الون د ۱۹۶۹ کال د فروری میاشتی په (۲۲) نیټه د فرانسی د لوموند جریدی سره په یوه مرکه کې وویل که ... غواړی چې د آزادی، او کمونیزم په لیار کښې د عربی نړی او مصر اتاتورک شی نو باید د اسرائیلو د له مینځه وړلو فکر پریږدی او د اسرائیلو ، د حکومت سره د سولی او روغی جوړی تړون لاس لیک کړی [ مؤلف ]

## ۲ : د قومیت د فکر خپریدل

د قومیت په لور بلنه د اسلام په وړاندې ناروا ده رسول اکرم صلی الله علیه وسلم تری داسی منع کړی ده : دعوها فانها منتنه ( دا کار پریږدی بوی لری )

خو کله چې د اسلام په ضد د توطئې پروګرام وو، تر څو هغه اسلامي دولت چې د عقیدې او فکر په اساس ولاړ وه له مینځه یوسی نو په ډیرو ځایونو کې پټو او د ځمکې څخه لاندې حزبونو او ډلو هڅه وکړه چې د قومیت [1] او وطن پرستې نوم اوچت او بلنه ورته وکړی .

---

۱ - په اروپا کې په نولسمې پیړۍ کې داسې پټ تنظیمونه جوړ شو چې د قومیت په لور یې بلنه کوله سره لدې چې په خپله اروپایانو د قومیت په اساس خبره زړه خبره ګڼله خو د اسلام په ضد یې د یوې وسلې په صفت کار تری واخیست کله چې غربی صلیبیانو پتیله چې ترکیه له اسلام څخه لری او اسلامی خلافت ختم کړی نو دننه په ترکیه کې د ( طورانی قومیت ) په نوم او په عربی نړۍ کښې د ( عربی قومیت ) په نوم یې هلې ځلې پیل او د قومیت د بیرغ لاندې مسلمانانو عسکرو د انګریز ( لارنس ) د مشرۍ لاندې د ترکیې د مسلمانانو عسکرو سره جنګ وکړ .
د دوه یمې نړیوالې جګړې وروسته چې استعمار چیانو سره دا ډار پیدا شو هسې نه چې اسلامی دولتونه یو ځل بیا د اسلام په نوم سره راټول نشی نو د انګلستان د بیرونی چارو وزیر د اسلامی ټولنې پر ځای بلنه ورکړه چې عربی ټولنه جوړه شی .
د ۱۹۵۰ په لسیزه کښې د عرب په نوم بلنه خورا ګرمه شوه او دا کار ځینو جوړو شوو عربی مشرانو د دې لپاره وکړ چې په عربی نړۍ په خاص ډول په مصر کښې په اسلام باندې د راټولیدلو غورځنګ خورا ګرم شو تر څو عربان له اسلام څخه لری او په قومیت سره راټول شی [ مؤلف ]

په غربی صلیبی دولتونو کې داسی پټ تنظیمونه جوړ شوه چې د قومیت په لور یې بلنه کوله او شپه او ورځ یې هڅه کوله چې عثمانی خلافت او د هغوی اسلامي حکومت ( که څه هم خورا ناتوانه او د اسلام سره یې اړیکی ډیری سستی شوی وی ) له مینځه یوسی د قومیت په نوم تنظیمونه او ډلی جوړی او تر نن پوری وروسته لدی چې د اسلام د دښمنانو په ملاتړ یې د اسلامي خلافت دولت له مینځه یو وړ په اسلامي نړۍ کې واکمن دي .

قومي فکر یوازې دا خبره پوره نه ګڼی چې د خلکو زړونه او عقلونه د تبلیغاتی وسایلو لکه اخبار ، رادیو ، تلویزیون ، کتابونو او نورو خپرونو په واسطه د ځان تابع کړی بلکه غواړی چې په مکتبونو او پوهنتونو کې د زده کړی د نصاب په صفت استعمال شی او پدی برخه کې د حاکمی طبقی چې له یوی خوا همدا ډول فکر لری او له بلی خوا دوی هم د دی فکر د خاوندانو له لوری پوره ملاتړ هم ورسره شته ځکه چې د زده کړی پروګرام او تعلیمی نصاب د یوی ټولنی د سیاسی روش ښکارندوی دي .

او دا ښکاره خبره ده چې په اسلامي نړۍ کې د تعلیم او تربیي خپل شوی اسلوب خورا زیات ناکام دی چې په بی دینۍ ( سیکولیریزم ) او قومیت باندی اتکاء لري .

او له دین څخه بیزاری ( سیکولیریزم ) او قومیت ته اتکاء د دی معنا لری چې د یهودیانو او صلیبیانو هغو پټو پروګرامونو ته یې پوره غاړه ایښی ده چې په اسلامي نړۍ کې یې د الحاد خپرولو لپاره په کار اچولی دي .

په اسلامي دولتونو کې باید هڅه وشي چې تعلیم او تربیه د اسلام په رڼا کې وشي خو د صلیبی فکرونو سره ملاتړی قوتونه تل زیار باسی چې د اسلامي موادو او دینی موضوعاتو په ځای قومي مسایل تدریس شي .

د عقل څښتنان پدی پوهیږی چې د قومیت فکر ته رشد ورکوونکی هغه صلیبیان دی چې د یهودیانو سره نژدی اړیکی لری نو دا فکر اصلا د صلیبیانو له لوری یوه لویه توطئه وه .

او دا چې د قوم پر اساس حزبونه جوړ شوه - هدف دا وو چې په اسلامي هیوادونو کې دا فکر رشد وکړی او هم پری اسلامي خلافت له مینځه ولاړ او پدی اوس وختونو کې د اسلامي ټولنی د جوړیدو مخنیوی پری وشي.

**۳ : د آزادۍ او خپل سرۍ فکرونو خپریدل**

د شک خبره نده چې د یهودی (سارتر) او د هغه د انډیوالی[1] (سیمون دی بوفوار) فکر ډیر ژر د ارادی له مخی له خپل هیواد څخه ختیځی اسلامي نړۍ ته صادر شو.

پدی خبره رسیدل کوم ژور فکر نه غواړی چې د آزاد خیالۍ او بی بندو بارۍ فکر د دی لپاره مینځ ته راغی چې هغو اسلامي هیوادونو ته چې مشران یې د صلیبیانو سره په دسیسو کې یو لاسی دی صادر شي ترڅو چې د ځوانانو په زړونو کې د اسلام روح مړ او د جنسی غریزو او نورو فسادونو په دریاب کې یې ډوب کړی چې په نتیجه کې یې د اسلام او د اسلام د شان او دبدبی د را اوچتولو له جهاد څخه مخونه واړوی ځکه هغه زړه چې په جنسی غریزو مشغول او د لهو او لعب اور پکې لمبی وهی هیڅکله ممکن ندی چې د جهاد سترتیاوو ته تیار شي.

دا اور یوازې ځوان هلکان نه سوزوی بلکه ښځو او جنکو ته یې هم لمبی رسیدونکی دی او پدی برخه کې لاندی وسایل خورا عمده رول لری.

**۱} مختلف نشراتی وسایل**

پدی برخه کې رادیو ، تلویزیون ، سینما ، ورځپانی ، مجلی ، او د کیسو کتابونه زیات رول لری.

زیاتی کیسی د جنسی مسایلو په هکله وی ان تر دی چې کله نا کله د جنسی مسایلو اجراء د فلمونو په واسطه په ډاګه ښوول کیږی.

---

۱- په غرب کې د ښځی په ځای د انډیوالی نیول ورځ په ورځ زیاتیږی او غربی قوانین ورته په قانونی ډول اجازه ورکوی - (ژباړن)

خو وروسته څرګنده شوه چې آزادي يوازې د هغو يهوديانو لپاره غوښتل کيده چې غلامان شوي وو

او وروروګلوي هم د هغو يهوديانو لپاره غوښتل کيده چې نورو هيوادوالو ورته په ښکته نظر کتل

او مساوات او برابري هم د هغو يهوديانو لپاره غوښتل کيده چې له عيسويانو سره يې فرق درلود او د هغوی په شان ورته څوک نه وه قايل

او ورپسې ډير انقلابونه چې نوي شعارونه يې پورته کړي وه راغله او هم ډيری عسکري کودتاګانی له ډيرو شعارونو سره

د جوړو شوو شعارونو ( نارو ) څخه لاندي ګتې اخلي

١ - وړې او تږی ولسونه د اميد په ډوډۍ او څپانده سيند مړوي چې عملاً هيڅ نه بلکه د ولس واکي پری لاس ته راوړی

٢ - ولسونه له خپلو عقيدو څخه لری کوي ، په خاص ډول اسلامي امت

تر څو له دي امت بيا داسې قوت جوړ نشي چې د يهوديت او مسيحيت لپاره خطر وی

٣ - په ولسی انقلابونو او عسکری کودتاګانو کې مشرانو ته موقع په لاس ورځی چې داسې ( ناری ) پورته کړی چې تجارت پری شروع او ولس له اسلام څخه لری کړی پدی وختونو کې د دی کار لپاره غوره ناره اسلامي سوسياليزم يا د ملی سوسياليزم غږ دی .

خو په ځنګ کې پدی هم بنديزونه لګوی چې اسلامي شعارونه ( ناری ) چې ساحه يې يوازې د شعارونو تر سرحده وی پورته شی چې لاندی اهداف پری لاس ته راوړی

١ - راپاريدلی او خوټيدلی اسلامي ولولی په لاس کې نيسی

٢ - د کوړوالی په لور يې بيائی پلوری يې او يا يې پدی اراده چې عملی کوی يې هميش يې پورته ، پورته کوی خو د عمل په لور يې يو قدم هم نه اخلي

ختيځه اسلامي نړۍ کې په خورا ښکاره او څرګند ډول دوام لري چې د حاکمو طبقو له خوا ورته پوره اجازه او په زياتو وختونو کې ملاتړ هم ورسره وي.
له مونږ سره تر ټولو غوره دليل همدا دی چې : هغه مصارف چې په ديني ، او اسلامي مضامينو کيږي وسنجول شي او بيا د هغو مصارفو سره چې په بربنډو مجلسونو ، د ساز او سرود په جلسو او فاسدو ډرامو کيږي انډول او وکتل شي چې کوم يو اضافه دی ؟
زه دا خبره نه کوم چې د اسلام فکر دی په همغه انډول ملاتړ وشی چې د صليبی فکر سره کيږی بلکه يوازې د کار کولو اجازه مونږ ته بس ده او د اسلامي رښتينی فکر د خپرولو په وړاندی هومره خنډونه او ستونزی راپورته کيږی چې په زياتو وختونو کې يې د ډار او شدت تر سرحد رسوی نو لدی کبله اسلامي فکر په سينو کې پټ پاتی کيږی او کله بيا د فتنو فساد زور او قوت په مقابل کې پدی ناتوانو او کمزورو سينو کې په جوش راځی او لوی خدای ته په خپل وطن او کلی کې د ناتوانۍ شکايت کوی لدی سره ، سره د اسلامي فکر د خاوندانو سره د طمع ورکولو او سرو او شنو باغونو په ښوولو سره هم معامله کيږی يا يې د يهوديت او نصرانيت په لور د مايلولو او يا د اسلام او يهوديت او نصرانيت د نژديوالی لپاره هڅه کيږی سره لدی چې يهوديت او نصرانيت له خرافاتو او لاس وهنی څخه ډک او اوس ، اوس يې د اسلام سره ښکاره او پټی دښمنۍ ته پوره ملاتړلی ده .
دا وړ پروګرامونه او هلی ځلی د کانفرانسونو او د مختلفو نشراتی وسايلو په واسطه د ( اسمانی دينو د نژديوالی ، وطنی وحدت ، او نورو غولوونکو نومونو سره ) په ښکلو قالبونو کې وړاندی کيږی :
دا څو لنډی خبری وی چې مونږ په ختيځه اسلامي نړۍ کې د صليبی فکر د اغيزو په هکله وکړی
خو د الله جل جلاله په فضل او مهربانی سره د معنا له مخی پوره حق يې څرګند او خطرات يې په ګوته کړی دی .

ای خدایه شاهد اوسه چې ما ستا پیغام ورساوه .

**۳ } په ختیځه اسلامي نړۍ کې د یهودي مارکس د فکر اغیزې**

دا خبره اوس پټه نده پاتې چې د یهودي ( مرد خاي مارکس ) نظریه چې د ( علم په رڼا کې ) ورکړې شوې نظریه ورته ویل کیږي کومه نوې او تازه نظریه نده - بلکه د حقیقت له مخې د حضرت عیسی علیه السلام د میلاد څخه د وړاندې نظریو تکرار دی او یا په لنډو ټکو دا نظریه د ( هیګل او فیور باخ ) د علمي نظریو علمي غلاء ده چې د هغوی د نظریاتو جزئیات یې سره راټول او یو ځای لیکلي دي

خو لدې سره ، سره بیا هم د نوي علم سره پوره مخالفت لري لکه څنګه چې د سالم او روغ انساني فطرت سره مخالفت لري .

**د دې فکر د ټوکیدو انګیزې**

د ( مرد خاي مارکس ) ځانګړې ژوند د دې فکر انګیزه شوه چې د ټولني سره یې د فقر او مسکینتوب له کبله سخته دښمني او حسد درلود - ان تردې چې د خپلې کورنۍ د ښځینه غړو سره یې هم درلود - او د ژوند په سختو حالاتو کې مجبور شوی چې خپلې لیکلې یو کتاب په مختلفو چاپوونکو موسسو په یو وخت کې جلا ، جلا وپلوري او له هرې موسسې یې قیمت ترلاسه کړي .

او دا چې لدې فکر سره د ورانولو او ګډوډولو اثر یو ځای شوی دی د هغو صفاتو له کبله دی چې د مارکس د ځوانۍ په دوران کې له ده سره پیدا شوي وو ، پدې خبره د ده پلار شاهدي ورکړې ده او د پلار خبره د ځوی د عاداتو په هکله د کاني کرښه ده .

او دا چې دا فکر د فساد او بې حیائی سره زیاته خپلوي لري ، لدې کبله چې د مارکس شخصي ژوند ناسته ولاړه لیوني او پریوتي اخلاق د ده په فکر ښکاره اغیزمن دي ، د ده اخلاق د ده یوې لور ته هم په میراث نقل شوي وه چې د یوه سړي سره یې بې له واده کولو د عشق شپې تیرولې خو

کله چې هغې ته ځرګنده شوه چې هغه له بلې ښځې سره واده کړې نو ځان یې ووژه.

دا خو د ده د شخصي ژوند حالات وه، دا ور شخصي ژوند باید په فکر اغیزمن وي فکر هم باید همغه ډول د کینې، ورانکارۍ او اخلاقي فساد ځخه ډک وي او د دی له پاسه نوموړی یهودي هم دی، د یهودیت ټول بد او پریوتي اخلاق د ده په ختهٔ کې پراته دي، نو کینه، ورانکاري او اخلاقي فساد یې لا وړپسې پیاوړی شو.

ختهٔ او خاوره د خوی او عادت ځرګندوونکي وي.

نو د حیرانتیا خبره نده چې په مارکسیزم کېدی کینه، ورانکاري، او اخلاقي فساد له اندازې زیات وي.

**نوری انګیزی:**

مارکس پداسې ټولنه کې ژوند کاوه چې د ټولنی اجتماعي وضعې لده سره د مارکسیزم په وده کې لاس وکړ. په ټولنه کې فیوډالیزم او بالاخره سرمایه داری د استعماری قوتونو په صفت هر څه په لاس کې نیولي وو. د کلیسا تیری او تجاوز هم لوړ پړاو ته رسیدلی وه د خلکو د زړو او عقلونو د مالکیت غوښتونکي وه - د کلیسا ملایانو له دین ځخه د مادي ګټو لاس ته راوړلو په خاطر لویه استفاده کوله او د زیاتو ګټو لپاره یې د حاکمو طبقو سره د دوستۍ او اشنائی لاس ورکړی وو.

پدی ټولو حالاتو کې د ټولنی اکثریت برخه چې ناتوانه او بې وسې وه د ستونزو او کړاوونو سره مخ چې ټل یې د خلاصوونکي غږ په لوړ غوږونه وو. چې نابېره یې غولوونکي غږ واورید چې ای د نړۍ مسکینانو سره یو شئ، ټوله نړۍ به ستاسې او یوازې د لاسونو کړه او زولنې به له لاسه ورکړی او نور هر څه به خپل کړی:

نو بې وسو او ناتوانو خلکو چې دا بلنه واوریده - پرې وغولیدل او دا بلنه یې خلاصوونکي بلنه وګڼله لکه چې الله تعالی فرمایي:

فَلَمَّا رَأَوْهُ عَارِضًا مُسْتَقْبِلَ أَوْدِيَتِهِمْ قَالُوا هَذَا عَارِضٌ مُمْطِرُنَا بَلْ هُوَ مَا اسْتَعْجَلْتُمْ بِهِ رِيحٌ فِيهَا عَذَابٌ أَلِيمٌ۝ تُدَمِّرُ كُلَّ شَيْءٍ بِأَمْرِ رَبِّهَا [الاحقاف : ۲۴-۲۵]

( کله یې چې وریځ د خپلو کلیو په لور راتلونکې ولیده نو ویې فرمایل : دا وریځ پر مونږ وربښت کوونکې ده ، نه بلکې هغه څه دي چې تاسی پری تلوار کاوو - یو باد دی چې دردناک عذاب ورسره دی چې د خپل رب په حکم هر څه له مینځه وړی ) .

همدا ډول کمونیزم په لومړی قدم کې وریدونکی باران ښکاری خو چې عملا ولیدل شی - داسی عذاب لرونکی باد دی چې هر څه له مینځه وړی .

د داسې ښامار په شان دی چې سر یې تیټ کړی او زهر یو خوا او بلی خوا ته خپروی تر څو هغه غوښتنی چې محرف شوی تورات او محرف شوی انجیل یې تری کوی عملي کړی .

ترڅو ټول دینونه او ټول بشریت بې له یهودو څخه له مینځه یوسی او یهودیان د ټولی نړۍ واکمن شی [1] .

د دی خبری ښکاره دلیل دا دی چې :

۱ - د کمونیزم مفکر ( مرد خای مارکس ) یهودی وو

۲ - د کمونیزم مالی ملاتړی یهودیان وو[2]

۳ - د کمونیستی انقلاب د نقشي طراحان یهود وو[3] .

---

[1]-مارکس وایې : د یهودیانو مشکل هغه وخت حل کیدای شې چې یهودیان په ټولو دینونو برلاسی شی او دا هله کیدای شې چې ټوله نړۍ د کمونیزم په واک کې ورشی او ټول دینونه او ملیتونه د کمونیزم په فلسفه کښې منحل شي .

[2]- عبارت وه له : اسحق مونتمر ، شبشو لیفی ، داروین ، او شیث .

[3]- عبارت دی له لینن باینمانو ، بوتر بسوف ، تروتسکی ، مارثون ، اکسلرو او تسازو تش څخه دوی له ۱۹۰۰ م کال څخه انقلابی شورا جوړه کړی وه سکرتره یې کریساکابا نومی یهودۍ د لینن ښځه وه .

۴ - د کمونیزم لومړنی واکمن لینن او ستالین یهودیان وو.

۵ - اجازه یې ورکړې ده چې یوازې د یهودیت دین ژوندی پاتې شي او له نورو ټولو دینو سره یې نه پخلا کیدونکې دښمني ده[1] مارکس وایي: دین د ملتونو افیون دی - د فرانسې د کمونیست حزب پخوانی مفکر وائي: دین د اوسنیو بدبختیو انعکاس او رد فعل دی.

**د کمونیزم فکري حقیقت:**

دا یوه علمي غلا ده چې مارکس د هیګل او فور باخ فکري معلومات راټول او داسې شکل یې ورکړ چې اتکاء یې په ماده او تضاد ده. خو د وخت په تیریدلو سره ثابته شوه چې د علم څخه خورا لرې او د رجعیت په لور مفکوره ده.

دلیل یې دا دی چې علم تر اوسه پدې اعتراف ندی کړی چې ماده یوازې هغه څه دي چې حواس یې حس کوي او بس لکه څنګه یې چې مارکس وائی هغه اوسنی نظریات چې ورکړی شوي دي د هغو له مخې یوازې ۷٪ مادي شیان محسوسیږي او پاتې ۹۳ ٪ مواد تر اوسه لا حواسو ندي حس کړي.

نو پدې اساس د مارکس د خبرې علمي اهمیت څه دی؟

او دا خبره یې چې په هره ماده کې تضاد شته، هم کومې علمي اساس نلري ځکه د پلټنې او څیړنې په رڼا کې دا خبره جوته شوې ده چې اصلا ټول شیان له ذرې څخه نیوټی تر لویو، او غټو موجوداتو یو بل ته ورته او هر یو له بل سره د تکامل په لور جوخت روان دي.

لَا الشَّمْسُ يَنبَغِي لَهَا أَنْ تُدْرِكَ الْقَمَرَ وَلَا اللَّيْلُ سَابِقُ النَّهَارِ وَكُلٌّ فِي فَلَكٍ يَسْبَحُونَ [د سوره یسین ۴۰ آیت]

---

[1] - دا خبره روجیه جارو دي په خپل په کمونیزم کښې لوی بدلون نومی کتاب د ۱۹۷۲ د دریم چاپ په (۱۴۲) مخ کښې لیکلی ده نوموړی کتاب عربی ژبې ته (نزیه حکیم) د (مارکسیه" القرن العشرون) عنوان لاندې ژباړلی دی

( نه لمر ته ښائي چې سپوږمۍ لاندې او نه شپه له ورځې وړاندې کيږي او هر يو په خپل مدار کې لامبو وهي ) .
هغه منفي او مثبت عنصرونه چې په هره ماده کې په مختلفو حالاتو کې ښکاري لکه په ( ذره ، برق ، مقناطيس ، نبات ، حيوان او انسان ) کې چې ليدل کيږي
يو له بل سره مخالفت نه بلکه تر څو چې ماده په خپل طبعي حال کې وي دا عنصرونه يو له بل سره ملګري او يو د بل د کمال او بشپړيدلو سبب ګرځي
نو ځکه الله جل جلاله فرمائي :
وَمِنْ كُلِّ شَيْءٍ خَلَقْنَا زَوْجَيْنِ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ [د سوره ذاريات ۴۹ آيت ]
( او له هر شي نه مونږ جوړه پيدا کړي دي تر څو تاسي پند واخلئ ) .
خو مارکس دا حقيقت درک نشو کړای او په جوختوالي او تکامل يې د تضاد خيال وکړ چې په همغه اساس يې غلط فارمولونه وتړل .
د همدغې غير علمي مفکورې په رڼا کې مارکس وويل چې تاريخ يوازې مادي دی
د اقتصاد په برخه کې يې وويل : کار د شيانو قيمت تعينوی په اجتماعي اړخ کې يې وويل : طبقات تل يو له بل سره په جګړه دي .
په سياسي اړخ کې يې وويل : د کارګرانو ديکتاتوري او د مسکينانو واک بايد قايم شي .
علم او تاريخ دواړو د مارکس نظريات درواغ وګڼل .
هغه لومړنی سړی چې مارکس يې درواغجن وګڼه د مارکس ملګری انګلز وه چې ويې ويل : ډير شيان چې تاريخ جوړوي يو له هغوی څخه دين دی او دين ماده نه ده .
او د شيانو د قيمت په تعينولو کې کار ته زيات رول ورکول د اتوماتو توليدي ماشينونو په فعاليدو سره بې اهميته شوه ځکه د دی ماشينونو په فعاليدو سره د کار ګر رول بالکل لږ او يا له مينځه ولاړ بلکه ځای يې

انجینر ، فن پوه ، اداری مسئول او نورو پوهانو ونیوه او د مادی قوت زیاته برخه هغه ماشین تهیه کوی چې د سرمایه دار زیاته برخه مال پری مصرفیږی .

نو پدی ډول علم د مارکس نظریه غلطه ثابته کړه .

او په اجتماعي اړخ کې هم د داخلی کشمکش او جګړی نظریه ځکه باطله ده چې اصلا په شیانو کې تضاد نشته لکه څنګه چې مارکس وایې او بیا د هغه په اساس د کشمکش او جګړی قانون بناء کوی .

تاریخ هم د ټولنو طبقاتی جنګ دروواغ وګڼه ځکه د تاریخ په اوږدو کي ډ ډیری زمانی لپاره داسی ټولنی جوړی شوی دی چې د طبقاتو په مینځ کې کشمکش نه بلکه ورورى او دوستى وه . رسول اکرم صلى الله علیه وسلم هغه صحنه داسی تمثیلوی : ( مسلمانان د یوه بدن په شان دی چې یو غړی یې په درد شي نو ټول بدن ورسره په درد کیږی ) په سیاسی میدان کې هم د ( کارګرانو د دیکتاتوری ) دعوه درواغ وختله .

ځکه کمونیستی نظامونه پداسی ډول جوړ شو چې هلته د کارګری ژوند هیڅ نښی نه ښکاری واکمن خلک پکښی د قیصرو او پاچایانو په شان ژوند لری

تر اوسه د کریملین مانۍ سره زر پر هغوی رازوړند دی ، او بالاخره په روسیه کې داسی کوڅی او سرکونه جوړ شوی دی چې بی د پرولتاریا او حاکمی طبقی له اولادونو څخه بل څوک پری نشي تلای .

د فقیرانو حکومت د هغو فقیرانو په لاس چې د سیاسی پوهی او فکر نه فقیران وو د دوی د ګټو لپاره جوړ شو - نه د بی وسو او ناتوانو طبقو لپاره .

دا فکر په اروپا کې پیدا په روسیه کې عملی

خو په افسوس سره باید ووایو چې ختیځی اسلامي نړۍ ته د یهودیانو په لاس رانقل شو که څه هم زمونږ خلک ورسره نا اشنا او نا بلده وه .

هغو کسانو چې په مصر کې خپور کړ عبارت وه له : هنری کوریل ، داوُل کوریل ، ریمون اجیول

دوی ټول یهودیان دی چې د دی پیړۍ په پیل کې د مصر د کمونیزم لوی مشران وو.

او یهودیان اوس هم هڅه کوی چې د خپلو لاس پوڅو په واسطه یې ملاتړ وکړی ـ په اسرائیلو کي يې د کمونیزم حزب تأسیس کړ ، دا هغه حزب دی چې لومړی ځل يې د روغی او جوړی وړاندیز له هغو کسانو سره وکړ چې په عربی نړۍ کې د کمونیزم مشران دی.

څو په ختیځه اسلامي نړۍ کې د عقیدی د مخالفت سره مخ شو.

خلکو هغه الحاد چې کمونیزم ورته بلنه کوی ونه مانه نو ځکه ښامار ځان بدل او رنګ يې بدل کړ.

او د کمونیزم نوی اسلوب ښکاره شو ، پدی اسلوب کې د عقیدی او دین سره ټرون اعلانوی ترڅو د یوی انتقالی دوری لپاره له دین څخه کار واخلی چې د کمونیزم پښی کلکی او بیا به له دین څخه ځان خلاص کړی نو ځکه وایې چې مونږ څو کمونیزم یوازې داقتصادي مسلک په صفت پیژنو عقیده مو اسلامي ده[1].

---

[1]- په روسیه کې د ( علم او دین ) په نوم خپریدونکی مجله لیکی : علمي سوسیالیزم او اسمانی دینونه یو له بل سره نه پخلا کیدونکی دښمنی لري . مونږ په لومړی سر کې درک کړه چې په روسیه کښې دینی ټولنې اسلامي دی که مسیحی له کمونیزم سره مخالفت لری نو ځکه د کمونیستی حزب ۲۲ غونډی پریکړه وکړه چې په اسلامی منطقو کې د دین سره د مقابلی لپاره باید خورا هوښیار او تکړه اوسو.

اوس چې مونږ د کمونیزم ته د رسیدلو په مرحله کښې یو که چیری مجبور شو چې د دین صفت وکړو نو بايد د انګلز دا وینا په یاد ولرو او بیا د دین صفت وکړو ( که په انجیل او نورو دینی کتابونو کښې یو مخ یا یو آیت دلته او هلته وی مونږ يې باید تاویل کړو چې ګنی کمونیزم د دین اصلي روح دی [ مؤلف ]

خپلو لاس پوځو ته یې امر وکړ چې باید په دین تعرض ونکړي بلکه باید دیني شعایر لکه لمونځ ، روژه او حج او نور اداء کړي تر څو چې پدی ډول د ساده او ناپوهو مسلمانانو زړونه تر اغیزی لاندی راولي.

لاس پوځي کامیاب هم شول

ځینو د خپلو نومونو سره د ( حاجی صاحب ) کلمه اضافه کړه او ځینی نور هڅه کوی چې هر وخت د بیت الله په لور ولاړ شی.

خو د شریعت له مخی دوی کافران دی دوی باید په خپل ورتګ سره مسجد حرام چټل نکړي

یَاأَیُّهَا الَّذِینَ آمَنُوا إِنَّمَا الْمُشْرِكُونَ نَجَسٌ فَلَا یَقْرَبُوا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ بَعْدَ عَامِهِمْ هَذَا وَإِنْ خِفْتُمْ عَیْلَةً فَسَوْفَ یُغْنِیكُمُ اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ إِنْ شَاءَ إِنَّ اللَّهَ عَلِیمٌ حَكِیمٌ [ د سوره توبه ۲۸ آیت ]

( ای مؤمنانو بی له شکه مشرکان ناولی دی باید هغوی لدی کال وروسته مسجد حرام ته نژدی نشی او که تاسی له مسکینوالی څخه داریږئ نو ژر دی چې الله به مو د خپلی لورینی له مخی که وغواړی بنه ماړه کړی بی له شکه الله په هر څه پوه او حکیم ذات دی).

مونږ همیش په ډاګه ویلی دی او وایو چې اسلام له کمونیزم سره هیڅکله نشی یو ځای کیدای

ځکه کفر او ایمان نشی یو ځای کیدای د حق او باطل تر مینځ روغه نشی راتلای.

بَلْ نَقْذِفُ بِالْحَقِّ عَلَى الْبَاطِلِ فَیَدْمَغُهُ فَإِذَا هُوَ زَاهِقٌ وَلَكُمُ الْوَیْلُ مِمَّا تَصِفُونَ [ د سوره انبیاء ۱۸ آیت ]

بلکی مونږ پر حق باطل ولو ـ نو هغه ماتوی نو باطل بالکل له مینځه ځی او تاسی ته هلاک دی ستاسی د هغو کړنو له کبله چې تاسی یې بیانوی.

دا یوه فتنه ده چې اسلامي امت باید ځان تری وژغوری له الله جل جلاله څخه غوښتنه کوو چې مسلمانان لدی څخه وژغوری چې کمونیزم د

اقتصادي مسلک په صفت وپيژني ، پداسی حال کې چې اسلام په خپله اقتصادي نظام لري

وَأَنْ احْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَهُمْ وَاحْذَرْهُمْ أَنْ يَفْتِنُوكَ عَنْ بَعْضِ مَا أَنزَلَ اللَّهُ إِلَيْكَ فَإِنْ تَوَلَّوْا فَاعْلَمْ أَنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ أَنْ يُصِيبَهُمْ بِبَعْضِ ذُنُوبِهِمْ وَإِنَّ كَثِيرًا مِنْ النَّاسِ لَفَاسِقُونَ() أَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُونَ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنْ اللَّهِ حُكْمًا لِقَوْمٍ يُوقِنُونَ [ سوره مائده ۴۹ - ۵۰ - آيتونه ]

( نو ای محمده! صلی الله علیه وسلم ته د الله جل جلاله د نازل کړي قانون سره سمه د دې خلکو د چارو فیصله وکړه او د هغو د خواهشاتو پیروي مکوه، پام کوه چې دا خلک تا په فتنه کې ونه چوي یوه ذره قدرې دې هم له هغه هدایت نه اوونښتې ونه مومي چې الله جل جلاله تاته درلېږلی دی. نو که دوی ورڅخه مخ واړي نو وپوهېږه چې الله جل جلاله د دوی د ځینو ګناهونو په مجازات کښې په غم کښې د دوی د لتاړولو اراده کړېده، او دا حقیقت دی چې له دې خلکو نه زیاتره فاسقان دي (که دوی د الله جل جلاله له قانون مخ اړوي) نو ایا بیا د جاهلیت فیصله غواړي؟ پداسې حال کې کوم خلک چې په الله جل جلاله باور لري د هغو په نزد له الله جل جلاله نه بل غوره فیصله کوونکی هیڅ نشته) .

## دویم فصل

## د اسلامي نړۍ سیاسی وضعه

د دی پیړۍ په نیمائی کې هغه وخت مسلمانانو په ځانګړۍ توګه د عربی وچی خلکو زیاته خوښی څرګنده کړه چې د پردیو له واک څخه آزاد شول او خوښی یې څو چنده شوه چې متوجه شول چې دوی وروسته له امریکا ، روسی ، جاپان ، چین او اروپا څخه د نړۍ شپږم قوت دی.

خو د غم او خفګان هغه لویه پیښه یې هیره کړی وه چې د دی پیړۍ په لومړۍ برخه کې پیښه شوی وه دا هغه پیښه وه چې د هغی لپاره نړیوالی دسیسی په کار واچول شوی او د هغی لپاره نړیوال سیاسی کنفرانسونه جوړ شوه.

دوی د خلافت د مینځه وړلو پیښه هیره کړیوه هغه خلافت چې که څه هم په آخرنیو وختو کې خورا بی وسی وو خو بیا هم د مسلمانانو د راټولولو یوه لویه مرجع وه چې د خدای او مسلمانانو دښمنان پری ډاریدل.

او همدا ډول څوک دی خبری ته هم متوجه نه وه چې که څه هم استعمار لدی منطقی څخه خپل عسکری قوت ختم کړ خو منطقه یې بیا هم آزاده پری نښوده

بلکه په خپل ځای یې داسی لاس پوڅی پریښوول چې په خلکو یې لدوی څخه زیات ظلم او تیری کاوو که څه هم خپلی اصلی څیری یې په مختلفو ومونو او شعارونو له خلکو پټولی.

چې بالاخره د اسلامي نړۍ واکمن ټولی له هغه اسلامي نظام څخه چې وی خدای رالیږلی او حضرت محمد صلی الله علیه وسلم علمی کړی په ښکاره لری شول او یا یې خپل لری والی د اسلامي غولوونکو شعارونو او ومونو د پردو تر شاه پټ کړ ، ترڅو د الله تعالی دا وینا رښتینی شی.

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَقُولُ آمَنَّا بِاللَّهِ وَبِالْيَوْمِ الْآخِرِ وَمَا هُمْ بِمُؤْمِنِينَ() يُخَادِعُونَ اللَّهَ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَمَا يَخْدَعُونَ إِلَّا أَنفُسَهُمْ وَمَا يَشْعُرُونَ [بقره : ۸ - ۹ ]

ځینی خلک داسی هم شته چې ( په خوله ) وائی په الله او د آخرت په ورځ مونږ ایمان راوړی دی خو حقیقتا یې ایمان نه وی راوړی ( مؤمنان نه دی ) له الله سره ټګی ( د ټګۍ معامله ) کوی او هم له مؤمنانو خو حقیقتا دوی له ځان سره چل کوی او بس - خو شعور نلری ( نه پوهیږۍ چې د دی کار ضرر دوی ته مخ دی ) .

په راتلونکو خبرو کې انشاء الله دری مهمی خبری څیړو .

١ : د اسلامي خلافت ختمیدل

٢ : نوی ښکیلاک .

٣ : د اسلام د سیاسی نظام له روح څخه لرې کیدل .

## ١ } د اسلامي خلافت ختمیدل

د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د رحلت نه وروسته مسلمانان د بنی ساعده" په دیره کې راټول شول چې د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د قائمقام ، پریکړه وکړی خلکو واوریدل چې انصار د خلافت دعوه کوی ابوبکر او عمر رضی الله تعالی عنهم د جنجال د ختمولو لپاره ورغلل د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم پاک جسم چې صحابه ؤ ته له هر څه زیات ویاړمن وو تر هغو خښ نه شو تر څو چې د خلافت مسئله حل نشوه پدی کار کې ټولو مشرانو صحابه ؤ په اتفاق سره برخه واخیسته - د دوی کړنی دا وښودله چې د خلیفه ټاکل فرض دی .

لدی کبله اسلامي علماوو خلافت ته لوی امامت ویلی دی چې د لمانځه په امامت یې چې کوچنی امامت دی قیاس راشي ، ترڅو فرضوالی او په نورو فرضونو کې یې مرتبه څرګنده شي وروستیو فقهاوو ویلی دی چې خلیفه د شریعت د څاوند نماینده دی چې باید دین او د دنیا سیاست وساتی او د خلیفه دنده یې په ګوته کړی :

١ } د دین ساتنه

٢ } د دین په رڼا کې دنیا چلول

اسلامي خلافت تقريباً زر کاله دوام درلود چې خپلې دندې چې د خدای د قانون تطبيق او د مسلمانانو د يو والي ښکارونه ده په نسبي ډول سرته رسوله سمه ده چې اسلامي خلافت د ستونزو ، ناتوانيو او بې لارۍ سره مخ شوی وو خو موجوديت يې ساتلی وو :

د خدای قانون عملي - او د مسلمانانو يو والي ښکاره کړي .

د مسلمانانو په مينځ کې يې پدې هيله نوم پاتې وه چې که خدای مسلمانان راويښ او داسې څوک يې واکمن شي چې د خلافت حق په پوره ډول اداء کړای شي .

د ناتوانه څيز پاتې کيدل پدې هيله چې کيدای شي چې ښه او تواناشي له مينځه ورلو څخه ډير غوره دی د عقل څښتن هيڅ وخت دا نشي ويلې چې که د ناروغ دواء او علاج ممکن نه وي نو بايد ووژل شي .

کله چې د اسلامي خلافت واګې د عثمان اولادې ته په لاس ورغلی او څه د پاسه ۵۰۰ کلونه يې په لاس کې درلودې د دښمنانو دروازې ترويانا وروټکولې د خدای دښمنان يې په ختيځ او لويديځ کې وډارول ، نو دښمنان سره راټول او پدې يې بحث وکړ چې ( د شرق ) له مشکل څخه به څنګه ځان ژغوري ، پدې معنا چې څنګه کولای شي چې پاتې اروپا د اسلام د څپانده سيلاب څخه وژغوري .

خو چې د عثماني خلافت ورځ خرابه او دولت ناتوانه شو نو خپل بحثونه يې ( د شرق مشکل ) له نوم څخه ( څنګه کولای شو چې مريض سړی له مينځه يوسو ) نوم ته بدل کړل .

او بالاخره د خلافت د ړنګولو درنه پيښه بې لدې چې کومه لويه هنګامه جوړه شي مينځته راغله .

هو ! د هند مسلمانانو سره لدې چې خورا زيات مسکينان وو ډيرې روپۍ راټولې او ترکيې ته يې هغه چا ته وليږلې چې خپله يې د خلافت په راپرزولو کې لاس درلود

او په مصر کې مسلمانان راټول شوه چې اسلامي خلافت که څه هم له ترکیې څخه لرې وی جوړ کړی

خو ددی کار لپاره راټول شوی مجلس پرته لدی چې کومی پریکړی ته ورسیږی پای ته ورسید ، که څه هم د وخت پادشاه غوښتل چې یوه مثبته پریکړه وشي او همدی د خلیفه په صفت وټاکل شي خو انګریزی ښکیلاک چې د مصر اصلی واکمن وو حالات ګډوډ او د یوی مثبتي پریکړی اجازه یې ورنکړه

د خلافت د ړنګولو په نتیجه کې پرته له دی چې د مسلمانانو اوښکی توی او یا د غم ځینی شعرونه وویل شی بل هیڅ دروند عکس العمل ښکاره نه شو

مونږ دلته هغه عوامل [١] نه څیړو چې خلافت یې ړنګولی وو ځکه هغه باید په ځانګړی بحث کي وڅیړل شي

---

١ - تر ټولو مهم عامل د هغو پنځسو زرو یهودیانو ګډ کار وه چې پنځه ګور پونه یې جوړ او په لاندی کارونو کې یې برخه واخیسته :

ا } د سلطان عبدالحمید له مینځه وړل .

ب } د امت د دوه برخو عرب او ترک په مینځ کښې مخالفت او دښمنی پیدا کول

ج } له دین څخه د بیزاری ( سیکولیریزم ) اصل یعنی د دین او دولت جلا والی ته رشد ورکول

او آخرنی هلی ځلی هغه وی چې ت ، ا - لورنس وکړی او ویې ویل : زمونږ لوی هدف دا دی چې د مسلمانانو یو والی ختم او عثماني خلافت له مینځه یوسو ، لورنس چې د توماس چایمان غیر قانوني زوی دی ، د مکی د والی شریف سره یې دوستی هومره پیاوړی شوه چې مسلمان عسکر د ده د قوماندی لاندی په سوریه کې د عثمانی خلافت له لښکرو سره وجنګیدل نوموړی به ویل : که مونږ د متو په زور له ترکانو څخه د عربو حقوق واخیستل نو د اسلام څخه ډار مو د تل لپاره ختم او مسلمانان مو دیته تیار کړل چې د همیش لپاره یو له بل سره وجنګیږی [ مؤلف ]

مونږ پوازې دیته ګوته نیسو چې د خلافت د ړنګیدلو نه وروسته زمونږ سیاسي حال څه شو ؟ مونږ وایو

۱ } هغه حکومت له مینځه ولاړ چې د خدای د شریعت په رڼا کې یې پاچائي کوله

۲ } هغه دولت له مینځه ولاړ چې د مسلمانانو په سر سیوری او د دوی یو والی یې د عقیدی په رڼا کې راوستلی وو.

۳ } هغه دولت له مینځه ولاړ چې د خدای او د مسلمانانو دښمنان تری ډاریدل او د دی دولت د له مینځه وړلو لپاره یې د ناتوانۍ او بی وسۍ په وخت کې هم زرګونه دسیسی په کار اچولی

۴ } او بالاخره هغه دولت له مینځه ولاړ چې یهودیان پدی پوه وو چې فلسطین ته بی لدی چې دا دولت ړنګ نه وی هیڅکله نشی رسیدای او دا هغه ټکی دی چې یوه روسی سرجی نومی عالم د یهودی پروتوکولونو د نشر په وخت کېپه ډاګه کړی وو

د خلافت له ړنګولو څخه یې پنځوس کلونه وړاندی ویلی وو :

که یهودی ښامار غواړی چې فلسطین ته ورسیږی نو باید په لار کې لویه ستن عثمانی خلافت ونړوی

د خلافت له ړنګولو وروسته څه پیښ شو ؟

د بی وسه او ناتوانه سړی میراث د ښکیلاک ګرو دولتونو په مینځ کې وویشل شو :

سوریه او لبنان د فرانسی ، فلسطین او عراق د انګریزانو برخه شوه.

دا ټول د دی لپاره چې په فلسطین کې د اسرائیلو دولت جوړ شی چې په بل ځای کې به یې ان شاء الله په تفصیل سره وڅیړم.

او کله چې یهودی او مسیحی ښکیلاک ګرو پتیله چې خپل عسکر له منطقی څخه وباسی نو په ځایی یې داسی خلک مینځته راغله چې د هغوی په شان بلکه د هغوی څخه بد کارونه یې سرته رسول

نو که د خدای خوښه وه دا موضوع به د ( نوی ښکیلاک ) تر عنوان لاندی وڅیړم

## ۲} نوی استعمار ( ښکیلاک )

زوړ استعمار د یهودي ظالمو او زبیښونکو طاقتونو څخه عبارت وو چې د اسلامي نړۍ د سپکاوی او بی وسی کولو او د اسلامي عقیدی او اسلامي اصولو د له مینځه وړلو او بالاخره د اسلامي نړۍ د شتمنیو د تس نس کولو لپاره یې بډی وهلی وی

تر ټولو ستر کار یې همدا وو چې ( غربي فکر ، عادات او غربي اخلاق او کردار ) خپور او یا په بل عبارت اسلامي عقیده ، عادات او اخلاق یې له مینځه یوسی

دا هغه خبره ده چې د فرانسی د یو هنری هیئت مشر هغه وخت وکړه چې لبنان ته روان وو او پوښتنه تری وشوه چې د دی ډلی او د هغو جنګی کشتیو چې پخوا به لیږل کیدی تر مینځ څه فرق دی ؟

ویې ویل : د جنګی کشتیو اثر کیدای شي چې له مینځه ولاړ شی خو د دواړو ډلو اغیزی له مینځه نه ځی

د زاړه استعمار په مقابل کې به د مسلمانو ځوانانو او خلکو مخالفت او مقاومت همیش ژوندی وو که د اسلام لپاره جذبه لړ وه نو د وطن ملي نوامېسو او حیثیت او وقار جذبه خو ډیر ژر راپورته کیده - نو لدی کبله به زاړه استعمار په غیر ارادی ډول د ځان په مقابل کې مخالفتونه راپورته کول که څه هم د مخالفینو مقاومت به د دوی د له مینځه وړلو توان په مقابل کې بی وسی وو خو د دی لپاره بس وو چې دوی ته همیشنی سر درد وی مالونو او سرونو ته یې په پرله پسی ډول تاوان ورسوی

او له بلی خوا د دوی له لوری د عقیدی د له مینځه وړلو هلی ځلی د مسلمانانو سره یو نفسی مقاومت پیدا کاوو او دا کار د صلیبی جنګونو په دوران کې ښه څرګند شو چې د دوی ټولی هلی ځلی پاتی راغلی

نو که چیری د مالونو او سرونو تاوان کم او د نفسی مقاومتونو عوامل ورک شي نو دا به دوی ته خورا ګټه من وی

نو بالآخره یهودي او مسیحي ښکیلاک ګرانو پریکړه وکړه چې باید زاړه ښکیلاک ته نوی پوښ ورواغوندي او خپلو شومو اهدافو ته د هغو خائنو او پلورل شوو کسانو په واسطه چې د اسلامي نړۍ په مینځ کې شته ځانونه ورسوي .

دې هدف ته د رسیدلو لپاره یې لاندې لارې خپلې کړې :

**۱ } د مشر جوړول :**

دا هغه پروژه ده چې غربیانو د دې لپاره پیل کړه چې د اسلامي نړۍ له خلکو سره د مقاومت او مخالفت روحیه ختمه او خپل اهداف په لنډ ډول او لنډو لارو تر لاسه کړي بې لدې چې د سرونو تاوان سره مخ په لږ مال سره د قدرت لیونیان واخلي ، پخوا به غربیانو خپل ځامن او مالونه له لاسه ورکول . د خلکو د دین او وطن سره د مینې په اساس له مخالفتونو سره به مخ کیده ، اوس همغه پروګرام د یو اخیستل شوي مشر په واسطه بې لدې چې تاوان وکړي د غولول شوو ملتونو په خوښۍ او ښه راغلاست ویلو سره یې عملي کوي

د جوړو شوو مشرانو په لړۍ کې لومړنی مشر مصطفی کمال اتاتورک وو هغه وخت چې متجاوزو او یرغلګرو عسکرو د یوې نقشې او پروګرام له مخې د اتاتورک د لښکرو په مقابل کې خپله ماتې ښکاره کړه مصطفی کمال ځان د یو فاتح او قهرمان مشر په صفت مطرح او په ډیرې بې حیائۍ سره یې د ترکیې له ولسي جرګې څخه غوښتنه وکړه چې د ( غازي ) لقب ورکړي او غولیدلي ملت هم ناري کړې چې : ای ترکي خالده د عربي خالد تاریخ راژوندی کړه .

مصطفی کمال هغه کار په ډیرې اسانتیا سره وکړه چې د ټولې اروپا فوځ نشو کولی او هغه د عثماني خلافت رنګول وو . چې د خلافت د رنګیدو په نتیجه کې د اسلامي نړۍ په سیاست کې خوراً ناوړه بدلون راغی چې د نیمې پیړۍ په تیریدلو سره یې هم مونږ همدا اوس بدې اغیزې وینو

د مصطفی څخه وروسته نور مشران هم جوړ کړای شو چې د دی جوړو شوو مشرانو د مشرۍ په سیوری کې د یهودی دولت بنسټ کلک او تر اوسه ۷ چنده پراخ شوی دی

چې بالآخره د اسرائیلو د دولت د قانونی کیدنو لپاره یې هم زمینه برابره کړه چې د اخیستل شوو ځمکو اصلی خاوندان حاضر شول چې له اسرائیلی دولت سره د روغی جوړی تړون لاس لیک کړی [۱]

د مشر جوړولو لوبه امریکائي کړنه وګرځیده چې د ملتونو او ولسونو په هکله یې خپله کړه دا لوبه د حالاتو او وخت مطابق کله د عسکری کودتاګانو او کله د حزبونو او تنظیمونو او کله بیا د ولسونو په ملاتړ سرته رسوی روسانو هم پدی برخه کې د امریکا یانو تقلید وکړ.

او په ۱۹۶۲ میلادی کال کې نژدی وو چې د کیوبا په مسأله کې دواړوه ستر استعماری قوتونو ښکرونه اړم کړی نتیجی ته ورسیدل او اوس په ګډه او مشترک ډول پورتنی اسلوب استعمالوی که څه هم یو یې د ملاتړی او بل د مخالفت په کتار کې وي

**۲ } د انقلابونو لوبه**

دا لوبه امریکایانو د ۱۹۵۰ کال په لسیزه کې ګرمه کړه کله یو مشر جوړوی او کله دوه یا دری بیا د اردو په واسطه انقلابونه کوی چې پدی ترتیب د منطقی اردو د دی نوی وضعی ملا تړه او د منطقی زیړه دریشی د پردۍ زیړی دریشی ځای نیسی او د انقلاب څخه دفاع کوی او پدی ډول د دښمنانو اهداف بی لدی چې د سر او مال تاوان او د ولس د مقاومت سره

---

۱ - مایلز کوبلاند وایی : دا چې مونږ له ... سره کومک کوو هدف دا دی چې مونږ له ده څخه داسی یو عربی مشر جوړ کړو چې د خپل ملت او نورو عربو په وړاندی د احترام وړ وی ، د ده په توان کې وی چې داسی لوئی خطرناکی پریکړې وکړای شي چې هغه د غالمغال او مخالفتونو باعث ګرځی لکه د اسرائیلو سره د روغی جوړی پریکړه او نوری [ مؤلف ]

مخ شي پوره کيږي او بالفرض که څوک مقاومت وکړي نو دا اردو يې په خورا بې رحمۍ له مينځه وړي

عسکري انقلابونه نوري ګټې هم لري

عسکري کودتاء نامعلوم خلک مينځ ته راولي او کله مجهول النسب چې خلک نشي کولای چې اصلي څيره او يا نسب يې وپيژني نو لدې کبله کيدای شي چې داسې څوک د مسلمانانو د پاچائي په تخت کيني چې په نسبي لحاظ يهوديانو او د ښځې له مخې په نصاراوو او يا له دواړو سره اړيکي ولري او پدې ترتيب دري واړه دينونه د يو وطن اوسيدونکي ګرزي.

دا سياسي لوبې د يهودي لاسونو په لاس په اروپائي پايتختونو او يا په ماسوني کلبونو کې جوړيږي خو وروسته پاتې مسلمان امت په ژور خوب ويده وي.

لوبو کې تل هڅه کيږي چې ناتوانه او بې وسې مزدوران د مصالحو قربان او د توان او وسې خاوندان په ميدان کې تل پاتې شي که يو بې وسې مزدور د نورو له اهدافو څخه قرباني شو نو په ځاى يې بل مزدور يا بل نظام چې له پخواني نظام سره په کلي ډول جلا والي لري مينځ ته راولي ترخو د زاړه او تازه نظامونو تر مينځ اړيکي وړکي او غوليدلي ولس ونشي کولي چې ژر يې وپيژني.

که څه هم په ښکاره خو داسې معلوميږي چې مزدور واکداران د لوبې يو طرف دي خو واقعيت داسې ندې ځکه هغه څوک چې د دين او وطن د مصالحو په خلاف ځان وپلوري نشي کولي چې سر راپورته او مخالفت پيل کړي بلکه تل به يې د مزدورۍ او غلامۍ ځنځير په غاړه او د بل لاس ته به ګوري.

## ۳ } د شعارونو جوړښت او تجارت

شعارونه هم مصنوعي جوړيږي لکه مشران او انقلابونه چې مصنوعي جوړيږي دا کار د لومړي ځل لپاره د فرانسې د انقلاب په دوران کې وشو چې د آزادۍ ، ورورګلوۍ ، او برابري شعار پورته شو

خو وروسته څرګنده شوه چې آزادي یوازې د هغو یهودیانو لپاره غوښتل کیده چې غلامان شوی وو.
او ورورګلوی هم د هغو یهودیانو لپاره غوښتل کیده چې نورو هیوادوالو ورته په ښکته نظر کتل.
او مساوات او برابری هم د هغو یهودیانو لپاره غوښتل کیده چې له عیسویانو سره یې فرق درلود او د هغوی په شان ورته څوک نه وه قایل.
او ورپسی ډیر انقلابونه چې نوی شعارونه یې پورته کړی وه راغله او هم ډیری عسکری کودتاګانی له ډیرو شعارونو سره.
د جوړو شوو شعارونو (نارو) څخه لاندی ګټی اخلی.
۱ - وړی او تږی ولسونه د امید په ډوډۍ او څپانده سیند مړوی چې عملاً هیڅ نه بلکه د ولس واکی پری لاس ته راوړی.
۲ - ولسونه له خپلو عقیدو څخه لری کوي، په خاص ډول اسلامي امت.
تر څو له دي امت بیا داسی قوت جوړ نشی چې د یهودیت او مسیحیت لپاره خطر وی.
۳ - په ولسی انقلابونو او عسکری کودتاګانو کې مشرانو ته موقع په لاس ورځی چې داسی (ناری) پورته کړی چې تجارت پری شروع او ولس له اسلام څخه لری کړی پدی وختونو کې د دی کار لپاره غوره ناره اسلامي سوسیالیزم یا د ملی سوسیالیزم غږ دی.
خو په څنګ کې پدی هم بندیزونه لګوی چې اسلامي شعارونه (ناری) چې ساحه یې یوازې د شعارونو تر سرحده وی پورته.شی. چې لاندی اهداف پری لاس ته راوړی.
۱ - راپاریدلی او خوټیدلی اسلامي ولولی په لاس کې نیسی.
۲ - د کوږوالی په لور یې بیائی پلوری یې او یا یې پدی اراده چې عملی کوی یې همیش یې پورته، پورته کوی خو د عمل په لور یې یو قدم هم نه اخلی.

۳ - د خپل ځان ملاتړ تر لاسه کوی خو په عین وخت کښد دښمن ګتی هم په خورا هوښیارتیا او زیرکتیا سره په نظر کې نیسی
په اسلامي نړۍ کې یې چې د تطبیق شرایط آماده وی د تطبیق له مرحلی څخه یې په تش شعار بدلوی اعلانونه ورته کوی چیغی او سوری وهی خو وړاندی د عمل په میدان کې هیڅ نه او خالی میدان وی
تر څو د خدای د نعمت په مقابل کې ناشکری وکړي او خپل ولس د هلاک په لور بوځی [1]

---

۱ - همدا اوس د اسلامي نړۍ په ډیرو زیاتو هیوادونو کې دا لوبه ګرمه ده ، په ځینو هیوادونو کې د شریعت د یو یا دوه حدنو په قائمولو سره د خلکو د شریعت د تطبیق تنده ماتوی په ځینو نورو کې د لمانځه یا زکات لپاره د څو نوکرانو تعین پدی معنا اعلانوی چې ګنی دا دی مونږ شریعت تطبیق کړ ، له راديو ، تلویزیون او نورو نشراتی وسایلو څخه آذان هم خپروی د لمانځه وختونه او نور واړه ، واړه کارونه هم کوی تر څو پدی وسیله له هغو اهدافو چې مصنف لیکلی برسیره لاندی اهداف هم تر لاسه کړي
ا } ځان د شریعت ټیکه دار اوښائی او هغه اسلامی تجریکونه چې پدی لیار کې یې زیات وخت مبارزه کړی وي پدې معنا بدنام کړی چې بله ورځ هغوی همدا شعارونه پورته نشی کړای که پورته کوی یې نو دوستان او دښمنان به ورته د دوی د نوکرانو نوم ږدي .
ب } لدی کبله چې د دوی شریعت به د ولس څخه نه لوږه نه تنده او نه نوری ستونزی حل کړی وی نو د عام او له شریعت څخه ناخبر ولس سره به دا سوال مطرح شی چې اسلام د خلکو ورځنی مشکلات نشی حل کولی ځکه دغه دی د لمانځه نظام قام شو د زکات او روژی نظام قایم شو خو نه ظالم ورک شو نه اخلاقی فساد نه بی حیائی او نه زمونږ لوږه او فقر ختم شو
ج } د بل ځل لپاره څوک د اسلام په نوم غږ نشی پورته کولی او د اسلام په نوم غږ پورته کول به د دی معنا ورکوی چې دا هم دروغجن او تاجر دي

## ۴ } د اسلامي تحريکونو ټکول

په اسلامي نړۍ کې د خلافت له رنګيدلو نه وروسته ډير اسلامي تحريکونه په مختلفو نومونو مينځته راغلل نومونه يې جلا خو هدف يې چې د اسلام تطبيق دی يو دی او ځيني يې لا پدی هم ټينګار کوی چې بايد اسلامي خلافت يو ځل بيا جوړ شی ځکه د اسلامي خلافت له موجوديت څخه پرته هيڅ قدم منزل ته نشی رسيداي .

او چې دی تنظيمونو د پرمختګ په لور قدم واخيست نو د واکمنو له لوری پری ختموونکی ګوزارونه وشوه ثابتو اسنادو ښودلی ده چې ځينی عربی دولتونه او ځينی شرقی ځواکونه د دی ګوزارونو پوره ملاتړ کوي .

ځنيو ليکوالانو ليکلی دی چې يهوديان د دواړو ګوزارونو تر شاه ولاړ دي .

د ګوزار طريقه بايد دا وی چې د دوی په ضد مسايل راپورته او په نشراتی وسايلو کې اعلان شی د اسلامي تنظيمونو په خلاف ټول نشراتی وسايل بايد د منظم پروګرام له مخی خپرونی وکړی او بيا يې بايد د بيخه ويستلو لپاره قدم واخيستل شي پدی برخه کې اعدام وهل ، ټکول ، بندی کول - په بند کې رنګا ، رنګ تکليفونه او داسی نور سخت اقدامونه بايد

---

ځکه د ده شعار د فلانی د شعار سره څه فرق لري هغه څه وکړل چې تاسی به يې وکړی ؟

هغه به چې عمری ته لاړ نو ټوله شپه به يې په بيت الله او مسجد نبوی کښې ژړل په راډيو او تلويزيون کښې به يې چې خبری کولی نو د ولس په غمونو به يې اوښکی تويولی خو عملا: نه يې لوږه ختم کړه نه يې بی حيائی بلکه د هغه په وخت کې د بی حياء فلمونو ښوونه اوج ته ورسيده په بازار، کوڅه او هر ځای کښې د بی حيائی او فساد څخه بل څه نه ليدل کيده لدی څخه پورته خدمت بل څوک په بل نوم د اسلام د دښمنانو لپاره نشی کولی [ژباړن ]

له نظره ونه غورځول شي که دا مرحله په پوره زیرکتیا سره علمي شي نو لاندی نتایج به لاس ته راشی.

۱ - د بندیانو په هکله : په فکری او نظریاتی ساحه کښه ماتی وخوری له عصبی او نفسی ګډوډیو سره به مخ او د کمزورۍ او مرضونو ژالی به وګرځی.

۲ - د بندیانو د ښځو په هکله : که ښځی یې وی خویندی او یا لورګانی ، د خپلو مشرانو د غیاب په وجه به خپل سری شی - او مادي ضرورتونه یې ډیر ځله د ښوئیدلو باعث ګرځی.

هغو کسانو چې پورتنی بد کارونه کول او خیانت ته یې ملا تړلی وه ، کله یې چې د خپلو کړو نتایج وسنجول پوه شو چې تاوان یې کړی دي.

ځکه هغه چې په دار زړول شوی وو او یا یې د وهلو ټکولو په دوران کې روح الوتی وه نو دعوت د دوی د نشتوالی له کبله لا پسی پیاوړی او د دوی پاکو وینو دا لار، خړوبه او رینبی یې په هر لور وځغلیدی او هر اړخیزه میوه یې ورکړه.

خو هغو چې د ستونزو په مقابل کې ماتی وخوړه د دعوت په اوږو دروند بار وه چې تری وغورځیدل ، د دعوت اوږی سپکی او بار یې کم شو.

نو ځکه باغیانو د نوو اسلوبو په هکله فکر او د عمل میدان ته یې وړاندی کړل.

چې اوس وروسته لدی چې د شر اسلوب ناکام شو د ګټو او فایدو اسلوب په کار اچوی عزت ، د څوکۍ او مال اودولت د خلکو د غولولو لپاره په کار اچوی او هڅه کوی چې مختلف وسایل په کار واچوی چې د اسلامي حرکت په مینځ کې اختلافات زیات او له انشعابونو سره یې مخ کړي.

دوهم پروګرام هغه څه وکړل چې لومړی په کې ناکام شوی وو.

د مال دولت ، عزت ، څوکیو او نورو په مقابل کښېډیرو داسی کسانو ماتی وخوړه چې د لومړی پروګرام په مقابل کې ثابت پاتی شوی وو.

د حمد او ثناء وړ هغه ذات دي چې زړونه د هغه په لاس کې دی- د ټولو ستاینو مستحق همغه ذات دی

ځکه دوی هم د حرکت په اوږو باروو د حرکت اوږی له دوی څخه سپکی شوی.
د دنیوی گټو په مقابل کې د دوی ملا ټیټولو دا وښووله چې دوی د دی وړ نه وو چې د اسلامي حرکت په اول صف کې ودریږی او یا خلک دی پاکی لاری ته راوبلی نو دا هم د اسلامي حرکت گټه شوه.
خو داسی معلومیږی چې دښمنان لا تر اوسه پدی برخه کې خپلی ماتی ته ندی متوجه ، دوی اوس په هغو محدودو کامیابیو خوښی څرگندوی چې کله یې د زور او زیاتی لار پرېښی او د غولولو لار یې خپله کړی.
د دی خبرو معنا دا نده چې گنی اوس دوی د زور او زیاتی لپاره بالکل پرېښی ده ځکه زور انسان ړندوی مجبوروی یې چې کله ، ناکله تری کار واخلی بی لدی چې نتیجو ته یې متوجه شي غرور او خپل سری ورته پیدا کوی چې د تیرو اټکل او سنجش یې له یاده وباسي.
او لاس پورته کوی چې یو ځل بیا ماته شوی وسله په کار واچوي.
وَسَكَنتُمْ فِي مَسَاكِنِ الَّذِينَ ظَلَمُوا أَنفُسَهُمْ وَتَبَيَّنَ لَكُمْ كَيْفَ فَعَلْنَا بِهِمْ وَضَرَبْنَا لَكُمُ الْأَمْثَالَ [ د سوره ابراهیم ۴۵ آیت ]
( او تاسی په هغو ځایونو کې واوسیدلی چې پر ځانو تیری کوونکی پکښی اوسیدلی وو او تاسی ته ښکاره شوی وه چې مونږ له هغوی سره څه وکړل ؟ او تاسو ته مو مثالونه بیان کړل ).

**۳ : د اسلام د سیاسی نظام له روح څخه لری کیدل**

دا ممکنه نده چې دښمنان دی برسیره په دی چې د اسلام په ضد یې نه ستړی کیدونکی هلی ځلی کړی دي ، اجازه ورکړی چې د اسلام سیاسي نظام دی د یوه ملک په داخلي او یا خارجي چارو کې واکمن شي که اجازه ورکړی معنا به یې دا وی چې خپله او بدلی شړی بیرته سپړی او یا یې مثال دی ته ورته دی لکه څوک چې ځان ته کور جوړ او بیا یې بی ښه او بی بده او بی لدی چې بل کور یې دپیدا کړی ؤي وران کړی هوښیار سړی خو داسې کار نه کوي او مونږ هم باید په خپلو دښمنانو د غبیانو خیال ونکړو.

ځینی وائی : دښمن یوازې دا غواړی چې داسی یو نظام باید واکمن نشی چې په بیرونی سیاست کې د اسلام سیاسی اصول تطبیق کړی نو په همدی اساس که داسی نظام په واک راشی چې یوازې په کورنیو چارو کې د اسلام سیاسی اصول عملی کړی نو دوی ورسره کوم کار نلری او نه نړیوال ځواکونه د داسی دولت په کورنیو چارو کې مداخله کوی ځکه د نړیوال قانون له مخی یو دولت د بل دولت په کورنیو چارو کې ګوتی نشی وهلی.

زه وایم : دا خبره سمه ده خو چې خبره د اسلام نه وی لکه په البانیا کې چې د کمونستی نظام د عملی کولو اقدام وشو هیڅ غربی هیواد په موضوع کې مداخله ونکړه او همدا ډول چې کیوبا د کمونیزم په لور ولاړه چا غږ پورته نکړ او که کله هم یو لوی ځواک په یوه هیواد کې مداخله کوی بل ځواک لدی کبله چې د دواړو ځواکونو تر مینځ مخامخ جګړه پیل نشی سترګی پټوی لکه څنګه چې روسانو په پولینډ او چکو سلواکیه کښد مقاومت د ختمولو لپاره مداخله وکړه نو په ځواب کې یې نورو قوتونو د کمونیزم د هغی چوپتیا څخه د شکری یې په عوض کې پوره ځان غلی کړ کومه چې روسانو هغه وخت کړی وه چې په ۱۹۵۶ میلادی کې انګلستان ، فرانسی او اسرائیلو مصر ته ادب ورکړی وو خو د اسلامي نړۍ په هکله خبره داسی نده ځکه پدی برخه کې ټول نړیوال ځواکونه په یوه خوله دی چې باید اسلامي دولت جوړ نشی او دوی ته دا خبره هم کوم فرق نه لری چې اسلامي سیاست په داخلی چارو کې او یا په بیرونی سیاست کې د عمل ډګر ته ووځی.

غربی صلیبیان او یهودیان دیته هیڅکله تیار ندی چې خپلی ټولی هغه هلی ځلی او د مالونو او سرونو هغه قربانۍ ضایع کړی چې د اسلامي قوت د ختمولو د اسلامي خلافت د له مینځه وړلو او بیا د دی خلافت د میراث په ویشلو کې یې ورکړی دي.

او یا اوس اجازه ورکړی چې اسلامي دولت بیا جوړ شي ځکه دوی پوهیږی چې که څه هم اسلامي دولت یوازې د هیواد د داخلی چارو د

سنبالښت لپاره جوړ شي خو شاهين هيڅکله د تل لپاره په پنجره کي نشي بندي کيداى نو ځکه دوى د اسلامي دولت د نوم د راتګ سره مخالفت او مقاومت کوى

د ټولو هلو ځلو سره جنګ ته ملاتړى چې د اسلامي دولت په لور قدم اخلى که څه هم دا هلى ځلى په ښکاره ډول د دولت راوستلو په نوم نه بلکه په نورو نومونو لکه د اسلامى شريعت تطبيق - اسلامي ټولنه او يا د داسى تنظيم جوړونه وى چې د اسلامي دولت د راتګ زيرى ورکوى

**له اسلامي نظام څخه د لري والى ډولونه**

۱ } په پوره ډول اسلامي شريعت نه عملى کول او يا يې ځيني برخى عملي کول.

په لومړى صورت کې پکار دى چې ځينى اسلامي شعارونه په کار واچول شي او په دوهم صورت کې دا خبره پورته ده چې د شخصى حالاتو په هکله مربوط ځيني قوانين عملى شى او يا ځيني نور اړخونه د اسلامي عقيدى اسلامي اخلاقو او اسلامي تعليماتو څخه لرى وساتل شي

۲ } چې ولس د يو اسلامي امت په توګه پاتى نه شي.

وَإِنَّ هَذِهِ أُمَّتُكُمْ أُمَّةً وَاحِدَةً وَأَنَا رَبُّكُمْ فَاتَّقُونِي [د المؤمنون سورت ۵۲ آيت ]

(او داستاسې امت ايکى يو امت دى او زه ستاسې رب يم نوله همداماڅخه وويريږئ)

وَكَذَلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا لِتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ [د البقره : ۱۴۳ ]

( همدا ډول مونږ تاسى غوره امت ګرځولى يې تر څو تاسى په نورو خلکو شاهدان واست )

نو ځکه اسلامي امت په جلا ، جلا ډلو ويشل شوى او هره ډله د ريښتينى اسلاميت دعوه کوونکى ده.

۳ } چې حکومت د اسلام د قانونى بنى څخه لرى وساتل شي ، تر ټولو مهم قانونى اړخ يې دا دى چې مسلمانان پرى بايد خوښ او اسلامي شريعت يې پلى کړى وى

## دریم څپرکی ( فصل )

## د اسلامي نړۍ اجتماعي وضعه

د اسلام اجتماعي نظام له لاندې پرګنو څخه جوړ دی :

**مسلمان غړی** :

نارینه وي او که ښځینه باید د اسلام په اصولو ښکلی د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم تابع ، خپله وظیفه او فرض باید پخوا لدې چې ثواب یې وغواړي په پوره ډول اداء کړي.

مَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِنْ ذَكَرٍ أَوْ أُنثَى وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَنُحْيِيَنَّهُ حَيَاةً طَيِّبَةً [د النحل سورت ۹۷ آیت ]

( هر مؤمن سړی او ښځه چې نیکی وکړي مونږ به ښه ژوند ورپه برخه کړو په دنیا او آخرت کې ) .

دا هغه کار دی چې په مسلمان کې مثبت صفتونه راژوندی کوی او دیته یې متوجه کوي چې دی په هر حال او هره وضعه کې مسئولیت لري.

رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمائي : تاسې هر یو شپونکی ( پالونکی ) یاست او له هر یو څخه به د هغه د متابعینو پوښتنه کیږي ، سړی د کور واکمن او پالونکی دی او د کور په هکله به تری پوښتنه وشي او هره ښځه د میړه د کور پالونکې ده او لدې څخه به د کور د پالنې په هکله پوښتنه وشي

او بالآخره مسلمان باید د خدای رښتینې عبادت کوونکی وي په زړه کېږي باید د خدای او د رسول سره مینه او د خدای د لارې جهاد له ټولې دنیا څخه ورته غوره وي باید همیش د آخرت نعمتونه د دنیا په ټولو نعمتونو او خوښیو غوره وګڼي او د دنیا مینه یې زړه ته داخله نشي.

وَابْتَغِ فِيمَا آتَاكَ اللَّهُ الدَّارَ الْآخِرَةَ وَلَا تَنسَ نَصِيبَكَ مِنَ الدُّنْيَا [ سوره قصص ۷۷ آیت ] .

( څه چې خدای درکړی دی د هغو پواسطه اخروی ژوند وګټه خو د دنیا برخه دی هم مه هیره وه)
دا یو مسلمان فرد دی چې د اسلامي کورنۍ او اسلامي ټولنی خښته ده.

**مسلمانه کورنۍ**

کورنۍ په دوه مهمو ستنو : سړی او ښځی ولاړه ده.

دوی دواړه هر یو باید هڅه وکړی چې په خپل ملګری کې یې اسلام تر هر څه زیات وی.

رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمائي چې د دین څښتن ( پیغله یا ځوان ) د واده کولو لپاره درته پیدا شوه واده یې کړه که داسی ونه کړه نو ځمکه به له فتنو او فسادونو څخه ډکه شي.

او هم فرمائی چې ښځه د څلورو هدفونو لپاره په نکاح اخیستل کیږی... د دین خاونده غوره کړه لاس دی برکت ناک شه.

نو چې پدی رڼا کې واده وشي جوړیدونکی کور به د دوستي، خوښي او آرامتیا کور وی چې برسیره په ( خاوند او ښځی ) ټول کور او د کورنۍ غړی به آرامتیا، خوښی او دوستی حس کوی.

اسلام د دوی د واده اړیکو او د هغه د دوام او یا خدای مکړه د طلاق او جلا والی ټول اصول واضح کړی دی د پلار او بچیانو اړیکی یې هم څرګندی کړی دی، په پلرونو یې لازمه کړی ده چې په نرمۍ او مهربانۍ سره به د خپلو اولادونو سره معامله کوی، په لمانځه به یې اموخته کوی که د لس کلنۍ څخه یې پورته لمونځ نه کاوه نو وهی به یې چې باید لمونځ وکړی نارینه او ښځینه اولاد به یوازې نه سره ویده کوی او ... په بچیو یې لازم کړی ده چې د پلرونو احترام به کوی نه به د ( اف ) په اندازه ځواب ورګرځوی او نه به یې ربړوی.

که مور او پلار تری غوښتنه وکړه چې له الله جل جلاله سره بل څوک شریک کړی نو یوازې دا او دیته ورتـه غوښتنه بـه یې نه منی نور بـه یې

هر څه منی ( وصاحبهما فی الدنیا معروفا ) په دنیا کې ورسره نیک چلند وکړه
اسلام د خویندو او ورونو او نورو خپلوانو تر مینځ اړیکی هم تنظیموی : د خپلوانو سره د ښو اړیکو داسی توصیه کوی : د خپلوانو سره مهربانی زما غوښتنه ده چا چې د ( رحم ) خپلوی وپالله زه به یې هم له خوښیو سره یو ځای کړم او چا چې پری کړه زه به یې هم پری کړم
فَهَلْ عَسَيْتُمْ إِنْ تَوَلَّيْتُمْ أَنْ تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ وَتُقَطِّعُوا أَرْحَامَكُمْ [ د سوره محمد ۲۲آیت ] .
( نو ایا تاسی دی خبری ته نژدی یاست که تاسی ته واکمنی درکړای شي نو په ځمکه کې به فساد وکړۍ او خپلوۍ به وشکوی )
او فرمائی : جنت ته به هغه څوک ولاړ نشی چې د ( رحم ) اړیکی پری کوی
او بالآخره اسلام مالي مسایل لکه میراث او وصیت پداسی لوړ شان واضح کړی دی چې پدي برخه کې د اسلام له عدالت سره هیڅ نظام او قانون برابری نشي کولی
همدا اوس د انګریزانو د قانون له مخی یوازې مشر اولاد د میراث واکمن دی او بس او په امریکا کې یو سړی هومره ډیره آزادی لري چې د خپل میراثی مال په هکله خپلی ملګری سپی او یا پیشو ته وصیت کولی شي کورنۍ او بچیان بی برخی کولای شي .

**اسلامي ټولنه**

اسلامي ټولنه د لیکلو شوو افرادو او لیکلو شوو کورنیو مجموعه ده د خپلو افرادو او کورنیو په شان به عملا اسلام پکې موجود وی - یوازې نوم ( اسلامي ټولنه ) کفایت نکوی
غړی به یې یو د بل هومره خوا خوږی وی چې دی مرتبی ته ورسیږی چې فرمائی : مسلمانان په مینه او ترحم کې د یو بدن حیثیت لری که یوه عضوه په درد شی نور بدن به هم ورسره خوږ من وی .

د دوی په مینځ کې به اجتماعي او اقتصادي ملګرتیا او بالآخره سیاسي پیوستون هغی مرحلې ته رسیږي چې قرآن کریم فرمائي :

وَالَّذِينَ إِذَا أَصَابَهُمُ الْبَغْيُ هُمْ يَنْتَصِرُونَ [ د سوره الشوری ۳۹ آیت ] .

( او هغه کسان چې کله پر هغوی تیری وشی هغوی یو د بل په ملاتړ بدل اخلی ) .

د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم لاندی مبارک حدیث پورتنی مفهوم داسی شرحه کوی : د خپل ظالم او مظلوم ورور سره کومک وکړئ، هغوی وویل د مظلوم سره خو به کومک وکړو د ظالم سره د کومک معنا څه ده ؟

رسول اکرم صلی الله علیه وسلم وفرمایل : له ظالم سره د کومک معنا دا ده چې له ظلم او تیری څخه یې منع کړی .

پدی ډول د ټولنی تر مینځ سیاسي تړون چې د ظالم لاس لنډ او مظلوم له ظلم څخه خلاص شی مینځ ته راځی دا مفهوم عربانو پخوا له اسلام څخه د ( فضول ) تړون په نوم عملی کاوه چې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم یې په هکله فرمایلی دی : که د بعثت نه وروسته دا تړون ما ته چا راوړاندی کړی وای نو ما به قبول کړی وای .

مسلمان فرد نارینه دی او که ښځینه مسلمانه کورنۍ او اسلامي ټولنه د تاریخ نومیالی او له ټولو غوره بابونه دی .

هغه مسلمان چې د جهاد په میدانو کې یې د قربانی او فداکاری اوچتی نمونی وړاندې کړی د حق خبری کولو جهاد یې د هر چا په مقابل کې که ښی پری لګیدی او که ترخی په مړانه وکړ چې دا هم د تاریخ ځلانده باب دی .

هغه مسلمانه ښځه چې د زخمی مجاهدینو په تیمار داری ـ او جهاد ته په رغبت ورکولو او کله هم چې ضرورت پیښ شوی د سړیو په شان یې توره په لاس کې اخیستی د تاریخ نه هیریدونکی زرین بابونه دی .

همدا ډول یې د مسلمان سړی د کور جوړلو او د اسلامي ټولنی جوړولو جهاد یې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم داسی ستایلی دی : له میړه سره د ښځی ښه ګوزاره د خدای په لار کې جهاد درجه لری .

هغه مسلمانه کورنۍ چې غړي يې يو له بل سره تړلي او يو د بل سره مينه او محبت لري کشر ، مشر ته احترام او مشر په کشر عاطفه ، يو بل ته د خير او صبر توصيه کوونکي او راتلونکي نسل د قهرمانو خلکو د کړنلارو خپلوونکي واوسي د تاريخ په اوږدو کې ډيرې ليدل شوې دي او هم هغه ټولنې ډيرې تيرې شوې دي چې د حق ساتونکي او حق روزونکي وي.

د انصاف خاوندانو دا خبره په ډاګه کړې ده چې که څه هم د اسلامي ټولنو مشرتابه ، به کله ، ناکله په کړه لار تللي وي خو اسلامي ټولنه چې په امت تري تعبير کيږي تل په حق پاتې شوې او د رسول اکرم صلی الله عليه وسلم دا خبره يې رښتيا کړې ده.

لا تجتمع امتي على ضلاله" (زما امت په ګمراهۍ نه سره يو کيږي)

نو لدې کبله چې دا پاک شريعت پدې لوړ امت کې نازل شوی دی نو دا شريعت تل پاتې او اخرنی شريعت ګرځيدلی دی.

اوس بايد وګورو چې لدې احکامو څه شته ؟

او دا غوره خلک څه شول ؟

پخه خبره ده چې حالت مو ډير خراب دی :

نن ورځ مسلمان د اسلام تطبيق ته ډير ندی متوجه بې له هغو چې خدای پرې مهربانه دی نور ټول په خاص ډول هغه چې د غربيانو څخه يې يو څو ټکي زده کړي وي د اسلام په نه پوهيدلو افتخار کوي د اسلامي عقيدې اسلامي اخلاقو ، او عباداتو څخه بې پرواه وي.

زياتره مسلمانۍ ښځې صليبي او يهودي تبليغاتو اغيزمنې کړې دي.

وينو يې چې د اسلام له غوره صفتونو څخه يې بې برخې کړې پرده ، پاکوال او دروندوالی يې ترې وړی ـ نو ځکه ورته په پوره بې حيائي او بې شرمۍ سره هغه څه رسيږي چې پخوانۍ ښځې ترې لوی خدای ژغورلې وې.

له پرديو خلکو سره په پوره آزادۍ او خپل سرۍ ، ناسته ولاړه کوي ، کور ، بچيان او اصلي دنده او مسئوليت يې چې مورولي او ښځولي ده شاته غورځولي ، پدې هم ښه پوهيږي که له ځان څخه غوره مانديڼه جوړه کړي نو

لویه خزانه ده لکه چې وائی : غوره خزانه ښځه ده او که له ځان څخه مور جوړه کړی : نو جنت یې د پښو لاندی دی ] مور مدرسه ده ، پوهنتون دي چې د زمانی پیاوړی خلک تری فارغیږی .

مسلمانه کورنۍ هم د سپکوالی سره مخ شوی ده .

وروسته لدی چې د اسلام له احکامو لری شوه نو د خاوند او ښځی تر مینځ اړیکی مخ په ړنګیدو او یا ړنګی شوی دی .

او هم د کورنۍ د نورو غړو تر مینځ اړیکی بالکل سستی شوی دی ـ د غربیانو څخه د تقلید په نتیجه کې د ( رحم ) اړیکی له مینځه تللی چې په نتیجه کېد کورنۍ د غړو تر مینځ روغه او خوښی ختمه شوی ده د کورنۍ د غړو په مینځ کې مخالفتونه او په خاص ډول په میراث او نورو مسالو یې جګړی او جنجالونه خورا زیات او ژور شوی دی .

اسلامي ټولنه هم د یو جسد په شان نده پاتی .

د اسلامي امت په مینځ کې ریښی او مزی شکیدلی ، نو امت یو ندی پاتی د یو اسلامي هیواد په مینځ کې هم دا ریښی ندی پاتی او د مختلفو حزبونو ، فرقو او ټولګیو په شکل یې تبارز کړي ، صلیبی او یهودی فلسفي پري حکومت کوی اقتصادي ، اجتماعي او سیاسي تړون پکښی ورک شوی نو ځکه یې کله دا او کله هغه یوی او بلی لوری ته بیائی .

**دین په کې بی احترامه شو**

عقیده بی احترامه شوه چې کافران ، بدکاران او ګناه کاران تفریط او نورو افراط ته مخ کړی دی اخلاق د رښتینولۍ ، امانت داری او پاکۍ د پرېښودلو له کبله له مینځه تللی پدی برخه کې هغو فاسدو نشراتی وسایلو پوره همکاری کړی ده چې د اخلاقو او ښو صفاتو هیڅ پروا نه لری د یهودیانو او مسیحیانو د خوښۍ لپاره یې هر بد کار ته ملا تړلی ده .

پدی هکله د زده کړی هغه نظام هم پوره ملاتړ دی چې د اسلام له روښانه اصولو څخه آزاد او د ساینسی ، اجتماعي او بشری علومو په برخه کې غیر اسلامي اصولو او پروګرامونو ته وده ورکوی ، قصدا او یا په بی خبری سره

يې د دين ، ديني خلكو او د دين علماوواو بالآخره د دين اصولو او احكامو سپكاوی ته يې ملا تړلی ده.

او بالآخره د اسلامي احكامو اهميت له مينځه تللی نو ځکه زنا ، سود خوړل او ظلم زيات شوی خلک د بديو په غونډو کې يو له بل سره اشناء کيږي او په ګډه د نيکيو مخنيوی کوی په بديو او ګناه کې يو د بل ملاتړی پاچايان او علماء چې رسول اكرم صلی الله عليه وسلم يې هم اهميت څرګند کړی د شر او فساد څخه لری ندی پاتی اميران او پاچايان له تولو څخه لومړی په فساد كه ګړ او علماء هم بالآخره په فساد ورګډ دی خو يوازې هغه چې زمونږ رب پری رحم کړی دی پاک پاتی دي.

زمونږ د ناتوانو خلكو له كبله په مونږ مهربانی شوی ده كه ملا كړوپی زاړه ، شيدی خوړونكی كوچنيان ـ او څريدونكی څاروی نه وای نو مونږ به د خپلو تيريو په نتيجه كې له عذاب سره مخ شوی وای.

# څلورم څپرکی (فصل)

## د اسلامي نړۍ اقتصادي وضعه

### د مروجه اقتصادي قوانینو په رڼا کې

د اسلامي نړۍ اوسنۍ اقتصادي وضعه خورا ژړوونکې ده.

ځکه په زیاتو اسلامي هیوادونو کې ملي عایدات هومره کم دي چې د یوه تن لپاره کافي مواد په دوه کسانو ویشل کیږي - بالخصوص په هغو هیوادونو کې چې کمونستي حکومتونه واکمن دي خلک له زیاتو ستونزو او تنګ لاسۍ سره مخ دي. خلک د قطاریز ژوند سره اموخته شوي دي چې تقریباً هر یو یې نیمه ورځ د خپلو ضروریاتو د لاس ته راوړلو لپاره په قطار دریدلو کې تر لاسه ورکوي.

دا خوښی هم د هغه چا په برخه کیدای شي چې په جیب کې یې څه وي... خو د زیاتو جیبونه خالي دي ملي تولیدات هم خورا ښکته دي.

ځینې اسلامي هیوادونه زراعتي دي خو د دې لپاره چې نړیوال ځواکونه یې خام مواد تر لاسه کړي او ځینې نور یې د سترو قوتونو د جوړو شوو صنعتي موادو د استهلاک بازارونه دي.

ټول اسلامي هیوادونه له (لویو صنعتونو) او لویو تولیدي منابعو څخه بې برخې دي هغه اسلامي هیوادونه چې لوی خدای پرې د زیات مال پیرزوینه کړې ده خپل واکې نه بلکه ستر نړیوال ځواکونه یې د مال د تغیر تبدیل او تصرف واک په لاس کې لري.

د دوی زیات مالونه د هغوی په بانکونو کې پراته دي چې تل د بین المللي نرخونو د ښکته او پورته کیدلو له کبله د تاوان سره مخ وي. او چې لږ څه روپۍ ورسره پاتې وي هغه تری په استهلاکي، او د ساعت تیریو په سامان اخیستلو تس نس کیږي.

د اسلامي هیوادونو زیاته برخه هیوادونه د مالي ملاتړ څخه بغیر روپو له کبله له اقتصادي ستونزو سره مخ دي، عمده او مهم دلیل یې دا دي چې واردات یې له صادراتو څخه زیات دي

دا د اسلامي نړۍ اقتصاد ته د مروجه اقتصادي قوانینو له مخی لنډه کتنه وه اوس به وګورو چې د اسلامي اقتصادي قوانینو په رڼا کې زمونږ د اقتصاد څه حال دی ؟

اسلامي هیوادونه یو له بل سره د اسلام له اقتصادي نظام څخه په لری والی کې فرق لری ، ځیني یې لږ لری او ځیني نور ډي له سود خوړلو څخه شروع د اسلامي نظام د پوره پرېښوولو پوری .

دوی د اسلام هغه کامل اقتصادي نظام پرېښدی او نه یې عملی کوی چې د متوازن اقتصادي نظام خاوند دی نه خو سرمایه داری ده او نه کمونیزم ، د اقتصاد هغه خپلواکی یې تضمین کړی ده چې د سرمایه دارۍ د هغه شخصی ملکیت په نظام کې نشته چې د ګډوډۍ او خپل سری باعث دی او نه د کمونیزم د هغه اجتماعي ملکیت په نظام کې شته چې خلک یې له مرۍ څخه نیولی او بی واکه کړی دی اسراف نه منی او نشته ختموی ، نشت د اقتصادي نظامونو لوی او ستر مشکل دی .

نشت په معنوی لحاظ پدی اساس ختموی چې باید ایمان ولرو چې الله جل جلاله توان لری چې هر بنده ته روزی ورکړی او په مادی لحاظ یې هم پدی اساس ختموی چې باید د اسلامي هیوادونو تر مینځ زراعتی ، صنعتی او تجارتی یو والی او تړون وی .

**د اسلامي نړۍ اقتصادي راتلونکی**

د اسلام اقتصادي نظام د سرمایه دارۍ او کمونیزم په مینځ کې بل غوره نظام دی .

د عملی کیدلو په صورت کې اسلامي هیوادونه خورا زیات امکانات لری چې دا نظام پیاوړی کړي ،د زراعت او صناعت کوم امکانات چې په اسلامي نړۍ کې موجود دي د ځمکی په بل هیڅ ځای کې نشته - کار کوونکی لاسونه هم ډیر ارزان دی او که کار کوونکی لاسونه د اسلام په ښکلو اصولو سنبال شي نو ټول به ښه کار په ډیره امانتداری سره کوي .

ډیر اسلامي هیوادونه هومره زیات رأس المال لري چې د هرې پروژې د پیل لپاره کفایت کوي ، اسلامي نړۍ نور هیڅ ته ضرورت نلري ، یوازې یوې خبرې ته اړتیا لري او هغه دا چې اسلامي نړۍ ( یو اسلامي امت شي ) نو بیا به ان شاء الله اسلامي نړۍ - د نړۍ ستر اقتصادي قوت وګرځي. او د اسلامي نړۍ په توان کېبه وي چې د خپلو صنعتونو ، بازارونو ، راس المال ستراتیژۍ موقعیت او د ولس د زیاتوالی له کبله په نړیوال اقتصاد کېبرلاسی رول ولوبوي.

وما ذلک علی الله بعزیز

## سریزه

دا باب مهم او لړزوونکی باب دی

ځکه وروسته لدی چې د اسلامي نړۍ اجتماعي ، اقتصادي او سیاسي وضع وڅیړل شوه ..... دا باب د ننۍ اسلامي نړۍ اوسنی پیښې څیړي

مونږ نه غواړو چې ګډوډ او بې ترتیبه بحث وکړو

او نه د ټولی اسلامي نړۍ پیښې څیړو ، که نه نو هر اسلامي هیواد له پیښو ډک دی

مونږ څو نمونې څیړو :

لومړۍ برخه د هغو هیوادونو ده چې له مونږ څخه په زور اخیستل شوی پدی لړ کې د اندلس او فلسطین په هکله لیکنه بس بولو

دویمه برخه د هغو هیوادونو ده چې همدا اوس په جهاد بوخت دی لکه فلپین ، فطانی ، او اریتریا

دریمه برخه د هغو هیوادونو ده چې د دښمنانو د دسیسو د خطر سره مخ دی چې په زور او دسیسو یې له مونږ څخه واخلی لکه مصر او اندونیزیا

والله المستعان

ولا حول ولا قوة الا بالله العلي العظيم

## لومړی څپرکی (فصل)

## په زوره اخیستل شوی هیوادونه

په ختیځ او لویدیځ کې .... له مونږ څخه په زور اخیستل شوی هیوادونه ډیر دی دا کړی له اندلس څخه پیل .... او تر فلسطین اوږده ده.
خو مونږ پدی لیکنه کې ټول نشو څیړلی - یوازې اندلس او فلسطین د بحث لاندی نیسو

### اندلس

د دنیا جنت اندلس د لومړۍ هجری پیړۍ په پای کې د مسلمانانو د متو په زور ، د وینو په قیمت او د جهاد په برکت آزاد شو - د تاریخ ستر او لوی تمدن په کې پداسی وخت کښېکاره شو چې ټوله اروپا د منځنیو پیړیو په تیارو کې ډوبه وه.
اسلام په اندلس باندی پوره اته پیړۍ حکومت وکړ اروپا ته د اسلام مدنیت وربښکاره او اروپایانو د اندلسی استادانو شاگردی خپل افتخارگانه خو بیا اندلس له لاسه ولاړ - د دنیا په مخ جنت دښمنانو واخیست د اندلس پاچایانو په خپله له لاسه ورکړ اسراف مخالفتونو او د وسلی د جنگ نه مخکښی فکری ماتی اندلس دښمنانو ته وسپاره.
مسلمانانو په اندلس ویر وکړ لکه وروسته یې چې په بخارا ، قرم او قفقاز ژړاگانی وکړی
او بیا یې د ترکیې په اسلامي خلافت ویرونه وکړه .
او بیا یې د اسمانی دینو د نازلیدلو په خاوره فلسطین او هغه قدس او مسجد اقصی ژړاگانی وکړی چې " بارکنا حوله ( د ده چاپیریال مو مبارک کړ ) یې لوی صفت دی .
مونږ پدی کرښو کې ننی اندلس څیړو نه پخوانی ، دغه اندلس څیړو چې له مونږ څخه په زور اخیستل شوی او مسلمانان خپلی پخوانۍ دبدبی ته متوجه کوی او دیته یې مخ را اړوی چې د خپل ورک جنت لپاره جهاد وکړی.

فلسطین ، مسجد اقصی ، د قرطبی ابن حزم او د نورو اسلامي علماوو هدیرې له دښمنانو څخه آزادی کړی .

مونږ باید متوجه شو چې اندلس څه وو ؟

څـه پرې وشـو ؟

او څنګه له لاســه ولاړ ؟

لدې بحث څخه چې څنګه له لاسه ولاړ مونږ دا ګټه اخلو چې لدې وژغورل شو چې نور مو له لاسه ولاړ نشی او بالاخره پدې پوه شو چې له لاسه تللی وطنونه به څنګه بیرته خپل کړو ؟

والله المستعان وعلیه التکلان – ولا حول ولا قوة الا بالله العلی العظیم

لومړی : اندلس پخوا له دې چې له لاسه ولاړ شی .

د دی بحث په برخه کې باید دواړه اړخونه وڅیړو : اندلس پخوا له اسلام څخه او وروسته له اسلام څخه

د دواړو برخو څیړنه عقل لرونکو ته درس او عبرت دی .

**اندلس پخوا له اسلام څخه** :

اندلس ( اوسنی اسپانیا او پرتګال ) د اروپا په جنوب غرب کې پروت دی چې لویدیځ خواته یې بحر محیط او ختیځ او جنوب خواته یې سپینه بحیره پرته ده .

د جبل الطارق تنګنا یې له المغرب څخه جلا کوی ، زیاته برخه یې له دنګو او ښکلو غرونو څخه ډکه ده .

ښکلی وطن دی ، ښه هوا او کلکه خاوره لری .

پخوا له اسلام څخه په منځنیو پیړیو کې د ناپوهی ، ظلم او اجتماعي توپیرونو په تیارو کې ډوب او د کلیسا په غلامۍ کې وو .

د دی لپاره چې راته څرګنده شي چې کلیسا تر کوم سرحده پریوتی وه بس ده چې ووایو :

کلیسا مینځل او پاکول ناروا ګڼلی وو او ویلی یې چې د روح په پاکوالی بدن خپل په خپله پاکیږی ان تردی چې ځینو راهبانو به پدی

افتخار کاوو چې ټول عمر یې د پښو مینځلو ګناه نده کړې د اسلام تر راتګه یې د مخ مینځل حرام ګڼل. د اسلام د راتګ نه پس خلک غسل خانو ته ننوتل.

ښځې یې که څه هم مورګانې یا سکه خورګانې وې چټلې ګڼلې - نه به یې یو ځای ورسره ژوند کاوو ، نه یې خبرې ورسره کولې او داسې یې ترې تیښته کوله لکه سړی چې د پمن ناروغ څخه تیښته کوي.

**اندلس وروسته له اسلام څخه** :

د تاریخي روایاتو له مخې د دوه او یا څلورو کلونو په دوران کې اندلس فتحه او خلک ډلې - ډلې په خوښۍ سره مسلمانان شوه.

اسلام د اندلس د خلکو ارادې ژوندی - زړونه او عقلونه یې روښانه او له داسې تمدن او ژوند سره اشنا شول چې بشري تاریخ پخوا نه وو لیدلی.

دی تمدن نړۍ ته لاندې نابغې وړاندې کړې .

ا - د ابن حیان القرطبی په شان لوی تاریخ لیکونکی د احکام القران تفسیر مشهور په ( تفسیر قرطبی ) .د المقتبس فی اخبار بلاد الاندلس لس ټوکه او نورو غوره کتابونو مؤلف

ب - ابن خلدون د روحیاتو د علم او د تاریخ د فلسفې مؤسس د مقدمه ابن خلدون او المبدا والخبر کتابونو مؤلف

ج - ابن حزم الظاهری د المحلی نومې کتاب نه ټوکونو په اصول فقه کې د الاحکام فی اصول الاحکام او د نورو څلور سوو کتابونو مؤلف

د - أبوالقاسم المجریطی : هغه مشهور فلک شناس چې کتابونه یې لاتیني ژبې ته هم ژباړ شوي دي.

مسلمانانو په قرطبه او طلیطله" کې رصد خانې درلودې او هم یې د وخت پیژندلو لپاره ساعت جوړ کړي وو.

هـ - ابوالقاسم الزهراوی هغه مشهور مسلمان طبیب دی چې د مثانې څخه یې ډبرې راوښکلې او یا یې په مثانه کې ماتولې او د سترګو عملیات یې

کوي الزهراوي او د کورنۍ ټولو غړو نرو او ښځو د طب په برخه کښې هيرونکې خدمتونه کړي دي

په لاندې علمونو کې هم اندلسي مسلمانانو لوړ نوم پيدا کړی وو

په کيميا کې د لومړي ځل لپاره يې بارود د چاوديدونکې مادې په حيث استعمال کړل

پدې هکله يې زيات اصول او قوانين وضع کړل چې وروسته اروپايانو ترجمه کړل

او د زياتو کيمياوي موادو د استعمال په نتيجه کې يې د چاپ ، رنګ ورکولو او معدنونو په برخه کې لوی او ستر کارونه وکړل .

په فزيک کې د دې علم ډير اصول يې وضع او د لومړي ځل لپاره يې د ( جاذبيت ) قانون وضع او د کشش او بصرياتو له قوانينو يې خبرې وکړي .

په جغرافيه او سياحت کې : د بحرونو ، غرونو او دښتو سفرونه يې وکړه زيات شيان يې کشف او په زړه پوري شيان يې نړۍ ته وړاندې کړل . پدې برخه کې يې د ( رازي ، بکري ، عذري ادريسي او ابن بطوطه ) په شان علماء ټولنې ته وړاندې کړل .

په زده کړه کې : نوی اسلوب يې وضع او د پوهنتون اصطلاحات يې مروج کړه لکه د غرناطې پوهنتون ، د قرطبې پوهنتون او اشبيلې پوهنتون

يوازې مسلمانان نه بلکه نامسلمانه خلک به هم په خورا زيات شوق او جذبې سره دې پوهنتونو ته ورتلل تر څو په خپله علم زده او پوه شي چې څنګه يې نورو ته ورسوي .

د نامسلمانو خلکو شهادت : ښه شهادت هغه دی چې د چا په هکله يې دښمن ووائي :

ماک کيب وائي : دنيا تر اوسه داسې خلک ندي ليدلي چې روزی غوره او ښه پوهان او نيکو کارونو سره مينه زياته وي .

که د اندلس عربو اروپا فتح کړې او لږ تر لږه دوه پیړۍ هلته اوسیدلي او د اندلس په شان یې خپل تمدن هلته هم عملي کړی وای نو موږ به نن د اوسني تمدن څخه پنځه پیړۍ وړاندې وو.
خو اروپائي تاریخ پوهانو له حقیقت څخه سترګې پټې کړې او اسلامي تمدن یې ښه ندې منعکس کړې
دا وو هغه اندلس چې وروسته له اسلام څخه رڼا خپروونکې وو د علم تمدن او نورو فنونو په هکله یې داسې ټولنه جوړه کړې وه چې په تاریخ کې یې نمونه نده لیدل شوې خو افسوس چې له لاسه ولاړ.

## ورک جنت

## په څه ډول اندلس له لاسه ولاړ ؟

د تاوان خبرې هسې هم دردناکې وي بالخصوص د هغه اندلس په باره کې چې د ځمکې پر مخ جنت ، اروپا او ټولې لویدیځې نړۍ ته د اسلام دروازه او ټولې نړۍ ته د تمدن لویه مناره وه خو د ښه علاج لپاره پکار ده چې مرض معلوم شي تر څو مناسبه دواء تجویز شي.
اندلس هغه وخت زموږ له لاسه ولاړ چې اسلام د مسلمانانو له زړونو څخه ووت واکمن فاسد ، علماء چپ او د دوی دواړو له ورانۍ نه پس پاتې خلک هم فاسد شوه.
اسراف د واکمنو خلکو په رګونو کې ځای ونیو ورو ، ورو د واکمنانو نژدې خلکو او درباریانو ته هم ورسید اسراف د فسق او بد اخلاقۍ دروازې خلاصوي نو ځکه د اندلس خلکو ډمانې ، او فاسدې ښځې وپیژندلې د مسرفینو اعصاب یې په قبضه کې یې واخیسته بدنونه یې ذرانه ( چاغ شول ) او په نعمتونو کې ډوب او د جهاد توان له لاسه ورکړ او جهاد له مینځه ولاړ.
واکمنو خلکو د وینځو او پیغلو په لاس ته راوړلو کې مسابقې وکړې له ښځو سره یې مینه او علاقه زیاته او د ماڼیو پر جوړولو اخته شوه زهراء ، الکامل ، المجرد ، الحائر الروض ، المعشوق ، المبارک ،

الرستق ، التاج او قصر السرور د قرطبې مشهور پاچائي قصرونه وو ناصر د الزهراء ماڼۍ په جوړولو هومره زيات مصروف شو چې د جمعې لمونځونه او د خلکو سره جلسې ترې پاتې شوې نو امام منذر بن سعيد لاندې آيتونه د پند په ډول وويلې :

أَتَبْنُونَ بِكُلِّ رِيعٍ آيَةً تَعْبَثُونَ()وَتَتَّخِذُونَ مَصَانِعَ لَعَلَّكُمْ تَخْلُدُونَ()وَإِذَا بَطَشْتُمْ بَطَشْتُمْ جَبَّارِينَ() فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ()وَاتَّقُوا الَّذِي أَمَدَّكُمْ بِمَا تَعْلَمُونَ() أَمَدَّكُمْ بِأَنْعَامٍ وَبَنِينَ()وَجَنَّاتٍ وَعُيُونٍ()إِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ [ د سوره شعراء ۱۲۸ - ۱۳۵ آيتونه ]

( ايا تاسې په هر لوړ ځاى کې يوه نښه جوړوئ پداسې حال کې چې تاسې لوبې کوئ او دنګې ماڼۍ جوړوئ ګواکې تاسې به تل پاتې واست ، او چې نيول کوئ نو د ظالمانو په څير خورا ټينګ نيول کوئ نو له الله ودر شئ او زما مننه وکړئ له هغه ذات نه ودار شئ چې تاسې ته يې هغه څه درکړي چې تاسې يې ښه پيژنئ ستاسې ملاتړ يې په څارويو او ځامنو سره کړى دى او په باغونو او چينو سره . زه بې له شکه پر تاسې د يوې لوئې ورځې له عذاب څخه ډاريږم )

د زهراء ماڼۍ په هکله يې وويل :

أَفَمَنْ أَسَّسَ بُنْيَانَهُ عَلَى تَقْوَى مِنْ اللَّهِ وَرِضْوَانٍ خَيْرٌ أَمْ مَنْ أَسَّسَ بُنْيَانَهُ عَلَى شَفَا جُرُفٍ هَارٍ فَانْهَارَ بِهِ فِي نَارِ جَهَنَّمَ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ()لَا يَزَالُ بُنْيَانُهُمْ الَّذِي بَنَوْا رِيبَةً فِي قُلُوبِهِمْ إِلَّا أَنْ تَقَطَّعَ قُلُوبُهُمْ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ [ د سوره التوبه ۱۰۹ - ۱۱۰ آيتونه ]

( ايا هغه څوک چې د خپلې ماڼۍ بنسټ د الله په ډار او د هغه د خوښۍ په هيله ايښې غوره دى او که هغه څوک چې د خپلې ماڼۍ بنسټ يې د يوې بهيدونکې کندې پر غاړه چې هر وخت د راپريوتلو په درشل کې وي ايښې وي ؟ نو دغې ماڼۍ خپل خاوند د جهنم په اور کې وغورځولو او الله ظالم قوم ته لار نه ښائي تل به د دوى ماڼۍ چې جوړه کړې يې ده د دوى په زړونو

کې شک او تردد وی مګر هله چې زړونه یې ټوټه ، ټوټه شي او الله په هر څه عالم او حکیم دی )

ځینو والیانو او امیرانو په ښکاره ګناه کوله ، د دوی ښکاره ګناه کول د دی باعث ګرځیده چې عام خلک په ګناهونو زړور او په عام ډول یې وکړی ، تاریخ پوهان پدی برهخ کې د ( حکیم بن هشام ) او د هغه د زوی عبدالرحمن نوم اخلی.

په کوم ځای کې چې حاکمان ښکاره ګناه ته ملا وتړی ، نو عام خلک ډیر ژر د هلاکت کندی ته غورځیږی لوی خدای رښتیا فرمایلی دی :

وَإِذَا أَرَدْنَا أَنْ نُهْلِكَ قَرْيَةً أَمَرْنَا مُتْرَفِيهَا فَفَسَقُوا فِيهَا فَحَقَّ عَلَيْهَا الْقَوْلُ فَدَمَّرْنَاهَا تَدْمِيرًا [ د سوره اسراء ۱۶ آیت ]

( کله چې مونږ د یوه کلی د هلاکولو اراده وکړو نو عیاشانو ته یې امر وکړو ، نو هغوی پکښی فساد وکړی نو په همدی کلی د عذاب خبره پخه شوه نو بیا یې په بشپړ ډول له مینځه یوسو)

په بل قرآئت کې( امرنا ) په شدد میم سره راغلی دی معنا به یې دا شی چې مونږ یې واکمنی عیاشانو ته وسپارو.

د اسراف د عام والی په هکله هغه فکری کار چې تقریباً زرو عیسائی مبلغینو او ۴۸۵ معلمانو کاوو او هغو مالی مصارفو چې د شرابو د عامولو لپاره د عیسائی کلیسا مشر په یو کال کې پنځه لکه فلورین د هغه وطن روپۍ مصرفولی خورا زیات رول ولوباوه

او هم کله چې حاکمانو او والیانو د عیسائی ښځو سره ودونه وکړه نو د فساد دروازه لا خلاصه شوه ابوالحسن ( الغنی لله ) د ثریا نومی عیسوی ښځی سره واده وکړ د خپلی ښځی د خپلوانو د قشتاله حاکمانو په ملاتړ یې د خپل وراره ( زغل ) سره جنګ وکړ.

دا ډول کارونه ډیرو امیرانو او والیانو بی له دی چې د الله جل جلاله لاندېنی مبارک آیت ته توجه وکړی په ډیر شوق او علاقی سره وکړل

يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا بِطَانَةً مِنْ دُونِكُمْ لَا يَأْلُونَكُمْ خَبَالًا وَدُّوا مَا عَنِتُّمْ قَدْ بَدَتْ الْبَغْضَاءُ مِنْ أَفْوَاهِهِمْ وَمَا تُخْفِي صُدُورُهُمْ أَكْبَرُ [دسوره آل عمران ۱۱۸ آیت]

( ای مؤمنانو ! له خپلو خلکو څخه پرته بل څوک په دوستانو سره مه نیسئ . ستاسی په هکله په هیڅ کې کموالی نه راولی هغه څه خوښوی چې تاسی ربړوی . دښمنی د هغوی له خولی څخه ښکاره شوی ده او هغه چې په سینو کې یې دی هغه ډیر لوی دی )

يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا عَدُوِّي وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَاءَ تُلْقُونَ إِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ وَقَدْ كَفَرُوا بِمَا جَاءَكُمْ مِنْ الْحَقِّ يُخْرِجُونَ الرَّسُولَ وَإِيَّاكُمْ أَنْ تُؤْمِنُوا بِاللَّهِ رَبِّكُمْ [ د سوره ممتحنه ۱ آیت ]

( ای مؤمنانو ! زما او خپل دښمنان په دوستۍ سره مه نیسئ تاسی خو هغوی ته د دوستۍ وړاندیز کوئ پداسی حال کې چې هغوی پر هغه حق کافران شوی دی چې تاسی ته راغلی دی ، رسول او تاسی یوازې په همدی گناه له خپلو ځایونو څخه شړی چې تاسی په خپل رب الله ایمان راوړی دی ) .

بس همدا د ماتی لومړی عامل وو چې معنا یې مونږ مات وروسته له نورو ماتو سره هم مخ او صف مو ماتی وخوړه .

هغه اختلافات او داخلی گډوډۍ چې په اندلس کې وی مهم عامل یې د چوکۍ او تخت په سر جگړی وی چې په لومړی ځل د امیرانو او والیانو په مینځ کې پیل او ورو ، ورو د غازیانو مینځ ته هم چې په قحطانی ، عدنانی ، عربی او بربری قبیلو ویشل شوی وو ورداخل شو

قومي او قبیلوی تعصبونه پیل ، اسلامي صف یې تقسیم ، تیکه ، تیکه او د خدای او د اسلامي صف دښمنانو ته یې د خوړلو امید پیدا کړ

اندلس د کودتاگانو او داخلی جنگونو مرکز وگرځید او په خورا ناخوښۍ سره باید ووایو چې د عیسائیانو ملاتړ به د مسلمانانو یوی ډلی ترلاسه کاوو او پدی ترتیب به مسلمانان ورځ په ورځ ناتوانه او دښمنان به یې د

قوت په لور روان او د شمالي غرونو تر شاه يې د اندلس د اسلامي حکومت د ختميدو انتظار کاوو
دريیم عامل هم په خپل کار پیل وکړ تر څو پاتی کار تمام کړی
د عیسایانو هغه لوی قوتونه چې د شمالی غرونو تر شاه یې د هغی ورځی انتظار کاوو چې مسلمانان ناتوانه او د اندلس اسلامي دولت ضعیفه شي په حرکت راغلل تر څو د مسلمانانو پاتی نوم او نښی ورختمی کړی نو د هسپانیوی پاچایانو په ملاتړ یې ( طلیطله ) نومی ښار د هغی د ناتوانه ، پست کمزوری چې په ناحقه یې د ( قادر ) لقب خپل کړی وو پاچا څخه په ۱۰۸۶ کال کي ونیولو او همدا یې د هغی لوی حملی چې صلیبیانو دیارلس کلونه وروسته په ۱۰۹۹ کال کې د بیت المقدس د نیولو لپاره وکړه لومړۍ او مقدماتی جګړه شوه .
او پدی ډول مسلمانان یو بدن وو چې یوی عضوی ته یې مرض رسیده ټول بدن خوړین او د مرضونو مرکز او یا په بله اصطلاح یو داسی تعمیر شو چې یوه ښخته تری لری شوه نو د ټول تعمیر د نړیدلو لار هواره شوه په ۱۲۱۲ میلادی کال چې د ۶۰۹ هجری کال د صفری میاشتی د ( ۱۵ ) ورځی سره سمون خوری د اسلامي لښکرو او د اتم فنسو د قوماندی لاندې د ( قشتاله ) د لښکرو تر مینځ اخرنی جګړه وشوه ، د اسلام په لوړ بیرغ د عیسایانو بیرغ بریمن مسلمانان د جلا وطنی ، سپکوالی ، خواری او کړاوونو سره مخ او له خپل جنت نظر ځمکی څخه د تل لپاره بی برخی شول. مسلمانانو د اندلس د ختمیدو نه پس بی له ژړاګانو او ویر څخه بل هیڅ ونه کړل او نه یې د څه هڅه وکړای شوه

تبکی الحنیفیه" البیضاء عن اسف　　　کما بکی لفراق الالف هیمان [1]

---

۱ - دا هغه ژړا ده چې ابو البقاء الرندی د اندلس له سقوط څخه وروسته کړی وه
ما هم د دی کرښو له لیکلو وروسته دوه ځل په اندلس ژړلی دی یو ځل هغه وخت چې په قرطبه کې می لوی جومات ولید چې زیاته برخه یې په کلیسا

علی دیار من الاســــلام خالیه" قد اقفرت ولها بالکفر عمران
حیث المساجد قد صارت کنائس ما فیهن الانـو اقیس وصلبان
حتی المحاریب تبکی وهی جامده" حتی المنابر ترثی وهی عیدان

پاک او سپیځلی دین له ډیر غم نه ژاړي لکه د معشوقی په جلا والی چې عاشق ژړا کوی- د اسلام پر خالی وطن چې وران او اوس هلته کفر اباد شو هلته چې له جوماتو کلیساګانی جوړی او پرته له زنګونو او صلیبونو څخه بل څه نشته ان تردی چې جامد محرابونه هم ژاړی او ان تردی چې له لرګیو جوړ شوی منبرونه هم ژاړی

اعندکم نبأ مـــن اهـــل انـدلس فقد سری بحدیث القوم رکبان
کم یستغیث بنا المستضعفون وهم اسری وقتلی فما یهتز انسان
ما ذاالتقاطع فی الاســلام بینکم وانتم یا عباد الله اخـــوان

ایا د اندلس له خلکو خبر یاست ؟ قافلی د هغوی کیسی رانقلوی - څومره ډیر ناتوانه خلک دی چې له مونږ نه کومک غواړی بندیان او مړی پراته دی خو هیڅ انسان له ځایه نـه خوزیږی او دا اســلامي ورورګلوی ولی ستاسی په مینځ کې پری شوه ؟ ای د خدای بندګانو ! تاسو خو سره وروڼه یاست )

**د اندلس پــه لور** :

د اندلس د بیا آزادۍ لار بالکل د هغی لاری مخالفه لار ده چې په هغی مو د لاسه ورکړی وو په معنوی لحاظ باید زړونه د اسلام او ایمان په رڼا کې وروزل شی په عسکری لحاظ باید زمونږ صف یو ، زمونږ امت یو ،

---

بدله شوی او اوس په کې د عیسویانو عکسونه او صلیبونه راځړوند وو ما وژړل او له جوش نه می پکښی آذان وکړ او بل ځل می هغه وخت وژړل چې ومی لیدل چې بربنډی او ناولی ښځی له خپلو سپیو سره په جومات کښې د سیل لپاره رادننه شوی [ مولف ]

زمونږ دولت برسیره پدی چې د ایمان وسله ورسره وی باید توان په اندازه جنګی وسایل هم ولری.
په جهادی لحاظ د المغرب په اسلامي خاوره کې د جهاد لومړی خط جوړ شی ځکه د المغرب او اندلس تر مینځ بی له څو قدمونو زیاته فاصله نشته.
نو باید اندلس یو ځل بیا آزاد شی هغه اندلس چې د اسلام ورک جنت دی او د اسلام بیرغ اته پیړۍ هلته رپانده وو باید اندلس آزاد شی ځکه د مسلمانانو خاوره ده د اندلس د آزادۍ داسی فرض عین دی لکه د بیت المقدس آزادی.

## اسلامي فلسطین

مونږ پدی برخه کې د فلسطین ننه نۍ پیښی پدی حساب چې فلسطین د اسلامي خاوری نه جلا کیدونکی جزء دی څیړو، دا د اسلامي امت یو اساسی مشکل او ستونزه ده.
تاریخي څیړنه مو هدف نده.
د تاریخ په برخه کې یواځی څینو مسایلو ته په لنډ ډول اشاره کوو تر څو پوه شو چې د فلسطین اسلامي خاوره څرنګه له لاسه ولاړه؟
بیا د فلسطین اوسنۍ وضع د سیاسي او اجتماعي ډګرونو په رڼا کې او بالآخره د راتلونکی فلسطین په هکله څو کرښی لیکو.

### لومړی } د فلسطین اسلامي خاوره څرنګه له لاسه ولاړه

ا : د تاریخ په رڼا کې
څینی وائی دا پیښه د ۱۸۹۷ کال د بال د کانفرانس څخه چې د ( تیو دور هرتزل ) په مشری جوړ شوی وه شروع شوی ده چې پدی کانفرانس کې پریکړه وشوه چې فلسطین به د یهودیانو راتلونکی وطن وی دی هدف ته د رسیدلو لپاره یې دوه لاری غوره کړی
۱ - یهودیان باید فلسطین ته هجرت وکړی

۲ - باید قانونی لاری ولټول شی چې د فلسطین نیول د یهودیانو حق وګڼل شی او باید نړیوال ځواکونه په توان او قانونی دواړو اړخونو سره د دی نوی دولت ملاتړ وکړی

هرتزل د نوموړي کانفرانس هدف په لاندی ډول تشریح کړ : ( مونږ څکه راټول شوی یو چې د هغه کور بنسټ کیږدو چې ټول یهودی امت ورته راټول شی ) او دی هدف ته د رسیدلو لپاره کانفرانس څلور پریکړی وکړی :

۱ - یهودیان باید فلسطین ته هجرت وکړی

۲ - د ټولی نړۍ یهودیان باید یو له بل سره راټول او یو تنظیم جوړ کړی

۳ - د یهودیت معنا او مفهوم په خلکو کې راژوندی او وروزل شی

۴ - د یهودیانو د اهدافو د پوره کولو لپاره باید منظم او پروګرامیز قدمونه واخیستل شی

د همدی پریکړو په رڼا کې نړیوال یهودی بانک تاسیس او د یهودیت د فکر د ترزیق لپاره د نړۍ په ګوټ ، ګوټ کې تنظیمونه او ډلی جوړی شوی او د لومړۍ پریکړی د عملی کولو لپاره د یوی اعلامیی په اساس د یهودیانو هجرت په لومړی قدم کې په زرګونو شروع او تر اوسه له ( دری میلیونو ) څخه زیات خلک هلته ورغلی دی

د مثال په ډول د بیت المقدس په ښار کې د یهودیانو موجودیت په ۱۱۷۰ کال په سلو کې صفر وو په ۱۷۵۰ میلادی کال کې ۱۵۰ یهودیان او په (۱۹۲۷) میلادی کال کې ۱۴۲۰۰۰ تنو ته ورسیدل

د فلسطین د خاوری د لاس ته راوړلو لپاره یې په لومړی قدم کې د مال روپو اود وخت په تیریدو یې د زور، قوت ، ډارولو او سوک څخه کار واخیست

د فلسطین خاوره یې د لاندی معلوماتو په رڼا کې د مختلفو کلونو په دوران کې تر لاسه کړه

په ۱۹۲۳ میلادی کال کې یې د ۱۷ \ ۴۹۷ جریبه رقبه پـه لاس کې وه خو پـه ۱۹۲۶ کال ۱۲۴ / ۱۶۷ جریبونـه او پـه ۹۳۲ میلادی کال کې یې ۸۹۳ / ۱۸ جریبه رقبه نـوره ترلاسـه او پـه ۱۹۳۳ میلادی کال کې یې

۹۹۱ \ ۳۶ جريبه رقبه او په ۱۹۳۵ ميلادي كال كې يې ۶۷۱۱۱۴ جريبه رقبه نوره په خپل كنترول كې راوسته.[۱]

د (۱۹۴۶ ميلادي كال په پاى كې د انګريزانو د معلوماتو مطابق يهوديانو (۱۶۲۴۰۰۰) جريبه په لاس كې درلوده خو بيا هم دا برخه د ټول فلسطين يوازې ۷٪ وه.

خو په ۱۹۶۷ ميلادي كال كې ټول فلسطين او د هغه خو چنده نوره خاوره د اسرائيلو په لاس كې پريوته.

د كانفرانس د دوه يمې پريكړې د عملي كولو لپاره لومړى ځل يې د عثماني خليفه سلطان عبدالحميد سره رابطه وكړه، ځيني وائي چې هرتزل په خپله پاچا عبدالحميد ته ورغى او ځيني وائي چې درى كسيزه هيئت يې ورولېږه د هيئت غړى عبارت وو له:

مزراحي قرصو د سالانيک د يهوديانو مشر

جاک او ليون دواړه د يهوديانو مشران وو

د سلطان عبدالحميد دربار ته هغه وخت ورغلل چې صدر اعظم تحسين باشا هم حاضر وو.

او لاندى هيلى يې ورته وړاندى كړى.

ا } يهوديان به د عثماني خلافت قرضونه چې ۱۳۳ ميليونه انګريزى سره زر و اداء كوى.

---

۱ - ډاكټر هرتزل په خپلو ياد داشتونو كښې ليكى چې سلطان عبدالحميد ماته داسي ځواب راليږلى وو: ډاكټر هرتزل ته ووائى چې پدى برخه كې بايد ټينګ قدمونه وانه خلى ځكه زه يوه لويشت ځمكه ورته نشم پريښودای ـ دا زما ځمكه نده دا زما د ولس خاوره ده زما اولس د دى خاورى لپاره مبارزه كړى او په خپلو وينو يې خړوبه كړى ده يهوديان بايد پوه شى چې كله زما پاچائى له مينځه ولاړه دوى كولاى شى چې همغه ورځ فلسطين ايله په ايله تر لاسه كړى خو چې زه ژوندى يم دا راته اسانه ده چې ځان په تيرو او تيزو اوسپنو سورى كړم خو فلسطين جلا نشم ليدلى [ مؤلف ]

ب ) د عثمانی امپراطورۍ د ملاتړ لپاره به د ۱۲۰ میلیونو فرانسوی فرنکو په مصرف یوه لویه بحری کشتۍ جوړوی.
ج ) مونږ به (۳۵) میلیونه لیره سره زر عثمانی خلافت ته د مالی کارونو د پوره کولو لپاره بې له ګټې پور ورکوو.
د دی ټولو کارونو په مقابل کې زمونږ یوازینۍ غوښتنه دا ده چې مونږ ته اجازه راکړای شي چې هر وخت او هره ورځ مو زړه وی بیت المقدس ته ولاړ او د بیت المقدس په چاپیریال کې ځان د اوسیدنی ځایونه جوړ کړو.
خو سلطان عبدالحمید د دوی ټولی غوښتنی رد او ځینی تاریخي روایات وائی چې د هیئت د مشر په مخ یې لیاړې تف کوی.
ب ) له خلکو خالی ځمکه دی هغه اولس ته چې ځمکه نلری ورکړای شی
اسرائیل زانفویل د استعماری ځواکونو او نړیوال ملاتړ د ترلاسه کولو لپاره یې دویمه هڅه د لوی انګلستان له لاری وکړه. یهودیانو د لومړی او دو یم نړیوالو جنګونو د ګډون له کبله وکړای شو چې د خپل ځان په لور د انګریزانو توجه راجلب او د ( هرتزل ) او ( وایزمان ) اړیکو زمینه برابره کړه چې دوی له خپلو هلو ځلو څخه ګټه ترلاسه کړی.
هغه وخت چې لوی بریطانیې د حسین شریف سره موافقه وکړه چې عربی وچه د عثمانی خلافت څخه آزاده او ( عربی خلافت ) جوړ او د مکی یا مدینی کوم اصلی اوسیدونکی یې مشر شی په عین وخت کې یې د یهودیانو سره هم اړیکی خورا زیاتی ټینګی او د ۱۹۱۶ کال د مارچ په میاشت کې د روسیې د انګلستان او فرانسی تر مینځ او د همدی کال د مې په میاشت کې د انګلستان او فرانسی تر مینځ پټ تړونونه لاس لیک شوه دا تړونونه چې ( د سایکس او بیکو ) په نوم مشهور شوه وائی چې د فلسطین ځمکه باید بین المللی وګرځی او یهودیان پکښې د ( سیاسي ، دینی او قومي یو والی ) په سیوری کې ژوند وکړی.
شریف چې د انګریزانو پر شرافت پوره ډاډ وو هغه وخت له پورتنیو پریکړو څخه هیڅ خبر نه وو ، بلکه وروسته له شپږو میاشتو هغه وخت خبر

شو چې په روسیه کې کمونستی انقلاب راغی او پورتنی تړون یې افشاء کړ.

د (۱۹۱۷) کال د نومبر د میاشتی په دوه یمه نیټه د انګلستان د بهرنیو چارو وزیر لورد بلفور لاندېنی اعلامیه خپره کړه:

د انګلستان محترم او قدرمن ټولواک د یهودیانو د وطن د جوړولو په پروژه کې خپل ټول توان په کار اچوی خو دا باید په ډاګه کړو چې مونږ به هیچا ته اجازه ورنکړو چې د هغو غیر یهودی خلکو چې په فلسطین کې اوسیږی په حقوقو تیری وکړی او یا په نوره نړۍ کې د اوسیدونکو یهودیانو حقوق د پښو لاندی کړی.

او پدی ترتیب یې (بیخاونده ځمکه) (غیر مستحقو خلکو) ته ورکړه او د یهودی دولت د جوړولو ناروا ملاتړ یې اعلان او فلسطین ته د یهودیانو ډله ایز هجرتونه او د فلسطین د ځمکی د رانیولو پروژه ګرمه شوه فرانسی او ایټالیا هم د ۱۹۱۸ میلادی کال د فروری په میاشت او امریکا د همدی کال د اکتوبر په میاشت کې خپل ملاتړ اعلان کړ.

د انګریزانو دا شوم پلان هغه وخت پوره بشپړ شو چې اعلان یې وکړ چې یهودیان باید فلسطین ته هجرت وکړی او فلسطین شرقی اردن او عراق یې د خپلی پاچائی په قلمرو کې راووست.

دلته شریف حسین او د هغه ملګری عربان پوه شوه چې فلسطین یهودیانو ته وسپارل شو خو دا داسې وخت وو چې عرب د متحدو دولتونو تر مینځ ویشل شوی وو.

او درېیم او آخرنی کوشش هغه وو چې د ۱۹۴۸ کال د مۍ د میاشتی په ۱۵ نیټه د انګلستان، امریکا، فرانسی او روسی نړیوال ملاتړ په واسطه د اسرائیلو دولت په رسمی ډول اعلان شو.

خو د دی اعلان څخه فقط شپږ میاشتی وړاندی یعنی د ۱۹۴۷ کال د نومبر د میاشتی په ۱۹ نیټه د ملګرو ملتونو له خوا د اسرائیلی دولت د

قانوني جواز لپاره خورا خطرناک اعلان چې فلسطین یې په دوه برخو ویشلی وو وشو خو دا د ځینو نظر دی.
مونږ یې هم پدې اعتبار تائیدوو چې رښتیا هم د یهودی دولت د جوړولو لپاره پورتنی مراحل مراعات شو.
ج : پخوانی تاریخ :
خو په تاریخي حساب مونږ د هغو خبره تائیدوو چې وائی خبره د هرتزل څخه دوه پیړۍ یا څه وخت نوره هم پخوا هغه وخت شروع شوی ده چې د پراګ اوسیدونکی حاخام لیفا د - ۱۶۰۹ کلونو په اوږدو کې بلنه ورکړه چې باید فلسطین د یهودیانو وطن وګرځول شی.
او ورپسی مورس هس د ۱۸۱۲ - ۱۸۷۵ کلونو په دوران کې لومړی بی دینه ( سیکولر ) او بیا د مارکس نظری ملاتړ سر راپورته کړ. خو بالآخره مارکسیزم یې هم پریښود او د یهودیت سره یې مینی او محبت ته ملا وتړله خپل مشهور کتاب روم او بیت المقدس یې په ۱۸۶۲ کال کې ولیکه پدی کتاب کې یې پدی خبره ټینګار وکړ چې یهودیانو ته وظیفه ورکړ شوی ده چې د دنیا نقشه بدله کړی.
له همدې ورځی د یهودیت لپاره منظم کار پیل او د ( یهودیت د دوستانو ) په نوم ډله د لیونبسکر د مشرۍ لاندی د ۱۸۲۱ - ۱۸۹۱ کلونو په دوران کې مینځ ته راغله او د همدی پیړۍ په اتمی او نهمی لسیزی کې یهودیت د لاندی فکر مدرسو په شکل تبارز وکړ.
(۱) عملی یهودیت :
یا عملی صیهونیزم مشهور لازښود یې دافید وو چې د ۱۸۵۶ - ۱۹۲۲ کلونو په ترځ کې یې د یهودیت دوستانو هغه تنظیم نوی کړ چې د فلسطین د غوښتلو او هلته د کورونو او آبادیو جوړولو هیله ورسره وه.
(۲) سیاسي صیهونیزم ( یهودیت ) :
د دی ډلی مشری په ختیځه اروپا کې لیونبسکر او مکار یهودی تیودور هرتزل د ۱۸۶۰ - ۱۹۰۴ په شاوخوا کښې په غاړه درلوده

ویل کیږي چې په لومړي سر کې د دوی دواړو خوښه نه وه چې فلسطین دی د یهودیانو وطن شی هرتزل خوښوله چې ارجنتاین - قبرص یا د سینا ټاپو د یهودیانو وطن وګرځول شی خو د نړیوال صیهونیزم د کانفرانسونو په ترخ کې دا خبره سرته ووته چې یهودیان باید فلسطین ته راټول شی.

د دی خبر ښکاره دلیل دا دی چې هرتزل د انګریزانو سره پدی خبره له نژدی خبری وکړی او په (۱۹۰۶) کال کې یې یو هیئت د سینا ټاپو ته ولیږه تر څو د سیناء د آب ، هواء او نوری وضعی په باره کې معلومات راټول کړی.

او له بلی خوا سینا د فلسطین سره په څنګ کې پرته ده غوره والی یې د دوی په وړاندې له فلسطین څخه کم نه وو پدی کې لوی خدای د حضرت موسی علیه السلام سره خبری کړی وی لوحی پکښی لیکلی شوی او لس وصیتونه په کې نازل شوی وو او د دی له پاسه د سینا ټاپو د هغه دولت په طبعی خط السیر کښی راځی چې د یهودیانو پخوانی هیله او د دی شعار په ضمن کې خلکو ته اعلان شوه چې واتی : ای اسرائیلو ستاسی پاچائی له فرات څخه تر نیله ده .

فرهنګی صیهونیزم ( یهودیت )

د دوی مشرانو په ۱۸۵۶ - ۱۹۲۷ کلونو کې اعلان وکړ چې د یهودیت دولت جوړول د یهودیت د اصلی صفتونو په رڼا کې انسانیت د کمال او لوړوالی پړاو ته رسوی.

مونږ وایو : د اسلامي فلسطین له لاسه وتل د لاندی مرحلو په دوران کې پای ته ورسید.

۱ : د شپاړلس پیړۍ څخه پخوا له یهودیانو سره تش یوه هیله وه چې څرګنده کړی یې نه وه.

۲ : د شپاړلس میلادي پیړۍ څخه وروسته د فکر او بلنی دور وو.

۳ : له نولس میلادي پیړۍ څخه د پروګرام او نقشي زمانه پیل شوه.

۴ : په شلمه میلادي پیړۍ کې عملی جامه ورواغوستل شوه.

مونږ دا ضروری نه ګڼو چې پدی خبره دلایل راوړو چې د تاریخ په رڼا کې یهودیان حق نه لري چې د فلسطین د خاوری ملکیت دعوه وکړی څکه :
فلسطین د هجرت له پنځلسم کال څخه اسلامي خاوره او له هغی څخه پخوا عربی خاوره وه چې پنځه زره کلونه پکښی عرب اوسیدلی وو.
پدی خاوره کې یهودیان یوازې ( ۱۴۰ ) کلونه د دوه دورو په ترځ کې اوسیدلی دی لومړی ځل له ( زر قبل المیلاد څخه تر ( ۹۲۷ ) قبل المیلاد او دو یم ځل له ( ۱۴۲ ) قبل المیلاد څخه تر ( ۷۵ ) قبل المیلاد پوری.
د : د یهودیانو د کامیابۍ عوامل
هغه عوامل چې یهودیانو ته یې زمینه برابره کړه چې فلسطین تر لاسه کړی په لاندی ډول لیکو :
۱ - پروګرام او د کامیابۍ لپاره یې حوصله :
د دوی فکری خلکو لکه مخکښی چې مونږ ولیکل د موضوع لپاره پروګرام جوړ او په ۱۸۸۷ میلادی کال کې د بال په کانفرانس کې پریکړه وکړه چې فلسطین ته دی هجرت زیات او هلته دی ځمکه واخیستل شی او له بلی خوا دی هڅه وشی چې د یوه لوی ځواک په واسطه نړیوال ملاتړ او تائید ترلاسه شی.
ویل کیږی چې د صیهونیزم ( یهودیت ) مشهوری پریکړی چې په پروتوکولات سره نومیدلی دی په لومړی کانفرانس کې لیکلی شوی.
پورتنی دواړه پروګرامونه د دی څرګندونه کوی چې دوی انسانی طبیعت ښه پیژندلی او د نړۍ سیاسي حالات او له هغو یې ګټه اخیستل په پوره غور سره په نظر کې نیولی وه د دوی حوصله د ستاینی وړ ده چې د دی پروګرامونو د تطبیق لپاره یې ښکاره کړه سره لدی چې پدی لار کې له خورا لویو کړاوونو سره مخ په ختیځه اروپا او بیا په لویدیځ المان کې د هتلر له لاسه له خورا ناګوارو پیښو سره لاس او ګریوان - د فلسطینی اولس او د نوری عربی او اسلامي نړۍ د مخالفتونو او مقاومتونو سره مخامخ او لدی وړاندی د عثمانی خلافت له دښمنۍ سره مخ شوی وو چې بالآخره لکه چې

هرتزل په خپلو یادداشتونو کې لیکی دوی د هغه سلطان عبدالحمید په ضد توطئی جوړی کړی چې د فلسطین په بدل کې یې میلیونونه روپۍ وانه خیستی او فلسطین یې له لاسه ورنکړ خو د ترکی د اتحاد او ترقی حزب چې ( اتاتورک ) یې په سر کې وو یوازې په دوه میلیونو روپو ټوله پروژه ومنله دا ټول د دی څرګندونه کوی چې دوی ښه او موثر پروګرام او د عملی کولو لپاره یې لویه حوصله درلوده او په خورا زیات افسوس سره باید ووایو چې په مقابل کې اسلامي امت هیڅ نه درلودل له ویښو مسلمانانو سره اخلاص وو د عملی کولو لار یې نه وه او نه د عملی کولو لپاره ورسره لوی صبر وو د یهودیانو د سلطی د ختمولو لپاره یې هغه چا ته هیلی وی چې پدی برخه کې یې هیڅ اخلاص نه درلود.

۲ - له جګړی او جنګ څخه د اسلام لری والی

دا ښکاره خبره ده چې اسلام لومړنی خطر دی څکه :

لومړی : خپلو منونکو ته داسی عقیده وربښی چې د خدای په لار کې مرګ د ذلت له ژوند څخه چې د پستو نظامونو په سیوری کې وی خورا غوره او بهتر ګڼی.

خپل منونکی د جهاد په لور بلی او کله چې د اسلامي نړۍ په کومه برخه تیری وشی په ټولو مسلمانانو جهاد فرض عین ګرځی.

دا ور عقیده د لوی خدای په مرسته بی له وسلی هم د کامیابۍ پړاوونه اسان وهلی شی او چې د اسلام دا امر ورزیات شی چې فرمائي :

وَأَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ وَمِنْ رِبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُونَ بِهِ عَدُوَّ اللَّهِ وَعَدُوَّكُمْ [ د سوره انفال ۶۰ آیت ]

( د هغوی په خلاف ټول هغه څه برابر کړۍ چې په وس مو وی له زور او له ترلو اسونو څخه چې داروی پری د الله دښمن او ستاسی خپل دښمن ).

که د خدای پورتنی امر ته په غوره کتنه وکړو نو پوه به شو چې اسلام : له مونږ څخه غوښتنه کوی :

ا } د منظم پروګرام جوړول : دا مفهوم د (وَأَعِدُّوا) او (قُوَّةٍ) الفاظ په ګوته کوی.

ب } په معنویاتو سنبالول .
ج } په فوځی قوت چې ښه ډیر تربیه شوی او مسلح فوځ باید ولرو .
د } د درنی وسلی زیاتوالی : دا مفهوم د ( رباط الخیل ) لفظ چې د ( قوه ) څخه وروسته ذکر شوی افاده کوی . پدی معنا چې د قوت نه وروسته هغه څه پکار دی چې اثر او رول یې ډیر وی لکه د آسونو زیاتوالی او یا نن درنی وسلی .
دویم : اسلام چې د جګړې میدان ته ورداخلیږی معنا دا چې اسلامي نړۍ به په ټول بشری توان سره جګړه کوی او اسلامي امت چې شمیر یې له ( زرو ) میلیونو څخه زیات دی د جګړې یو طرف به وی او یهودیان هیڅکله د دا ور جګړې تاب نه لری .
دریم : اسلام به د خپل سیاسي او اقتصادي قوت سره جګړې ته داخلیږی او یهودیان د دی جګړې تاب هم نلری ځکه د اسرائیلو د دوستانو ګټی د اسلامي نړۍ پوری تړلی او د یهودیانو د ملاتړو مالی مسایل د مسلمانانو په منګلو کې دي .
اسلام څنګه د جګړې له میدان څخه وویستل شو :
ډیر پخوا د دی کار لپاره هڅه شوی وه یهودیانو لومړی د دی هدف لپاره د عثمانی خلافت په مینځ کې کار وکړ د عملی کولو لپاره یې یهودیانو د ( یو والی او پرمختګ ) او ( د ترکیی د ځوانانو ) حزبونو په ملګرتیا په شریکه اقدام وکړ .
یوه روسی لیکوال سرکس نیلوس دی هلو ځلو ته ( د فلسطین په لار کې د خنډونو لری کولو ) نوم ورکړی دي .
دا پروګرام د هغه سلطان عبدالحمید په لری کولو چې د یهودیانو له منلو یې مخ اړولی وو د عمل صحنی ته نژدی او د هغه عثمانی خلافت چې اجازه یې نه ورکوله چې په فلسطین کي یهودی دولت جوړ شی په رنګولو په کامله توګه پای ته ورسید
( اسلام له جګړې څخه ویستلو ) هلی ځلی دوامداره شوی ان تردی چې د اسلامي امت په ځای ( عربی ټولنه ) د انګلستان د خارجه چارو د وزیر په

مشوره جوړه او د دی لپاره چې نوره اسلامي نړۍ باید د فلسطین په موضوع کې برخه وانه اخیستلی شی ( عربی ټولنی ) د فلسطین د آزادۍ بیرغ پورته کړ.

او د همدی (( عربی ټولنی ) د (۷) هیوادونو لښکری د فلسطین د آزادۍ لپاره جنګ پیل کړ او پدی ترتیب ( د نړۍ نورو مسلمانان د جګړې له میدان څخه بهر شو ) څکه د دوی په اصطلاح په کوم ځای کې چې د قهرمانو او ماتی نه خوړونکو عربو لښکری جنګیږۍ هلته د نورو مسلمانانو جهاد ته څه اړتیا نشته ، عربی ټولنه د ( یهودی دولت ) له اعلان څخه دری کاله وړاندی جوړه شوه .

او کله چې اسلامي ولسی ولوله د فلسطین جګړې ته داخله او شهید امام حسن البناء اعلان وکړ چې حاضر دی چې لس زره مجاهدین د جګړې میدان ته ورداخل او له اسلامي خاوری څخه دفاع وکړی .

او کله چې یهودیانو د جګړې په میدان کي د دی مسلمانو قهرمانانو له لاسه زخمونه وخواړه ( پدی حقیقت یهودیانو او مصری جنرالانو اعتراف کړی )

نو په همدی وخت کې د مصر د مزدور رژیم له لاسه مجاهدینو ته د شاه له خوا وژونکی ګوزار ورکول کیږۍ د مجاهدینو تنظیم منحل او غیر قانونـی اعلانیږۍ مشران یې زندانـو تـه پریـوزی او مشر یې د دولتی پټو پولیسو په واسطه پـه رڼا ورځ د ښار په عمومی میدان کې پـه شهـادت رسیږۍ [1].

---

۱ - د جمال عبدالناصر په زندانو کې د اخوان المسلمین د مشرانو وژنی ) نومی کتاب لیکی : په ( ۱۹۴۸\۱۱\۱۰ ) کال کې په فاید کې د انګلستان ، فرانسی او امریکا خارجه وزیرانو جلسه وکړه جلسی پریکړه وکړه چې باید د انګلستان سفارت دنده په غاړه واخلی چې د اخوان المسلمین حزب منحل اعلان شی دی کار ته د رسیدلو لپاره باید په قاهره کې بمونه وچاودل شی او وویل شی چې بمونه د اخوان المسلمین له خوا چاودول شوی دی .

او کله هم چې په ( ۱۹۵۶ ) او ( ۱۹۶۷ ) کلونو کې پروګرام جوړ شو چې باید د اسرائیلی دولت د نفوذ ځمکه پراخه شی نو د پروګرام د عملی کولو څخه ډیر لږ وخت مخکښی د اسلامي فکر خاوندان زندان ته ننویستل کیږی دا چې په ( ۱۹۴۸ - ۱۹۵۴ - ۱۹۶۵ ) کلونو کې اسرائیلو د خاوری مساحت پراخیږی او د اسلامي تحریک مشران زندان ته ځی او یا د ستونزو سره مخ کیږی کوم ناڅاپی او نابېره پیښی ندی چې سره یو ځای کیږی ؟

په ( ۱۹۷۵\۳\۳۰ ) کال د مصر ستری محکمی هغه اسناد افشاء کړه چې د مصر واکمنو ټولیو به د اسرائیلی دولت د خاوری د پراخوالی مصنوعي جنګونو په دوران کې اسلامي تحریک ته مخکښي تر مخکښی وژونکی سوک حواله کاوو.

۳ : د جګړی او جنګ له میدان څخه د فلسطین اولس لری والی

کله چې یهودیانو د فلسطینی اولس زړورتوب او قهرمانی ولیده او ورته ښکاره شوه چې هغه لومړنی خلک چې د فلسطین له خاوری څخه دفاع کوی همدغه فلسطینی قهرمان اولس دی.

او کله چې دوی د قدس د منطقی قوماندان شهید عبدالقادر حسینی او د منځنیو منطقو قوماندان حسن سلامه په شان شاته نه تلونکی قهرمانان ولیدل نو پریکړه یې وکړه چې باید فلسطینیان د جګړی له میدان څخه بهر شی پروګرام پدی ډول عملی شو چې د۷ عربی هیوادونو لښکری د فلسطینیانو په ځای او نمایندګی د فلسطین د آزادۍ لپاره جنګ ته داخلی شوی ورسره فلسطینیان له ټولو امتیازاتو بی برخی وسله او عسکری تربیه پری بنده او د عربی فوځونو په مینځ کې دا خبره پوره عامه او خپره شوه چې فلسطینیان د باور خلک نه بلکه د یهودیانو سره لاس لری.

---

او هم لیکی : د انګلستان سفارت د مصر له حکومت څخه غوښتنه وکړه چې باید د اخوان المسلمین حزب منحل شی او که منحل نشی نو د انګلستان اردو ( فوځ ) به د قاهری او اسکندري د نیولو لپاره یو ځل بیا اقدام وکړی [ مؤلف ]

مونږ پدی خبره نه پوهیدو چې ولی هغه عربی اردو چې مشری یې د انګریزی جنرال پغاړه ده د اسرائیلو په ضد جنګیږی ؟ سره لدی چې انګریزانو فلسطین یهودیانو ته وسپاره او یو یهودی دولت یې جوړ کړ.
او پدی هم نه پوهیدو چې نور عربی فوځونه چې واکمنی یې د انګلیسی جنرالانو په لاس کې ده ولی د فلسطین د آزادۍ جنګ ته ورځی ؟
خو اوس پوهیږو چې هدف د فلسطین آزادی نه بلکه هدف دا دی چې فلسطینیان باید د جنګ له صحنی څخه وشړل شی.
پروګرام کامیاب شو.
فلسطینی اولس د جګړی له میدان څخه وویستلی شو او د فلسطین خاوره د عربی قهرمانو عسکرو له لاسونو څخه ماتی خوړونکو یهودیانو ته مرحله په مرحله وروسپارل شوه.
او د ١٩٤٨ کال له جنګ نه وروسته د فلسطینی اولس لاس د جنګ له میدان څخه پری شو.
او وروسته بیا په سیاسي ډول هم دا اولس د خپلی خاوری له واکمنۍ څخه جلاء او موضوع د ملګرو ملتونو په مجلسونو کې د عربی ( عربی او اسرائیلی ) شخړی په صفت مطرح شوه.
د ١٩٦٧ کال د جون په میاشت کې د یهودیانو د لومړی ګوزار سره، تار، مار او نورو عربی فوځونو د فلسطینی سرغړوونکو په تکولو پیل وکړ.
د ایلول الاسود په پیښه کې یې ٢٢٠٠٠ فلسطینی ووژل.
او همدا ډول دا پیښی د تل زعتر ( صبرا او شتیلا) او نورو ژړوونکو پیښو په شکل کې تر نن ورځی پوری د عربی نړۍ د اردو په واسطه تکراریږی.[1]

---

١ - فلسطینی نه تابع کیدونکی خلک یا د عربی دولتونو په واسطه تکول کیږی چې یا یې عربی اردو له مینځه وړی او یا یې د فلسطینی مزدورانو په واسطه ترور کوی او یا یې په خپله اسرائیلیان په زندانو کې ربړوی د اسرائیلو د زندانونو رئیس ( حایم صیفی ) د خولی له مخی فعلا په اسرائیلو

## دويم } فلسطين اوسنۍ ژوونکي وضعه

د سياسي اړخ له مخې

ا } دولت له اولس ، خاورې او واکمنۍ څخه عبارت دي .

فلسطيني اولس نن په مختلفو پښو ويشل شوی او د مختلفو تنظيمونو او حزبونو په واسطه جلا شوی دی چې زيات تفصيل به يې په ( اجتماعي اړخ ) کې ولولی

د نړۍ په سياسي نقشه کې نن د فلسطين په نوم کومه خاوره نشته د فلسطين په ځای اسرائيل ليکل شوی دی اسرائيلو يوازې د فلسطين په خاوره کې قناعت ونکړ بلکه په ۱۹۶۷ کال کې يې د جولان لوړې څوکی له سوريې د اردن د سيند غربی برخه يې له اردن او د سينا ټاپو يې له مصر څخه ترلاسه کړ هغه ځمکی يې چې پدی وار خپلی کړی د هغو ځمکو څو چنده دی چې پخوا يې په ناروا نيولی وی .

فلسطيني اولس په خپله خاوره څه چې د ځمکی په هيڅ ځای کې واکمنی نه لري هغه اداره چې د فلسطين د آزادۍ غوښتونکی ډلی په نوم د شل پيړۍ په شپږمه لسيزه کې جوړه شوه جوخت ورسره نوری ډلی هم جوړی شوی ان تردی چې په مينځ کې يې داسی ډلی ورشاملی شوی چې په خپله د خپلو هلو ځلو مخه نيسی ځيني خلک لا وائی چې همدغو ډلو د ( ايلول ) او نورو ورته پيښو په هکله مقدماتی کارونه برابر کړی او يا يې په خپله پکښی برخه اخيستی .

خو په هر صورت دا اداره اوس په هغو ستونزو کې ښکيل ده چې د عربی نړۍ زيات واکمن ټولی په کې ښکيل دی [ ولا حول ولا قوه" الا بالله العلی العظيم ] .

---

کې ۵۸۵۲ تنه بنديان دی خو واقعيت د دی څو چندو ته رسيږی هلته له نوکانو وښکلو ، برقی ډنډو شروع او نور په سل ګونو ډوله غير انسانی عذابونه ورکول کيږی

ب : د اسرائیلو له خوا په زور او ناروا نیول شوی ځمکه هغه وخت قانونی وګرځیده چې خاوندانو یې پری اعتراف وکړ.

اسرائیلو له ډیری پخوا زمانی هڅه کوله چې د فلسطین د ځمکی خاوندان د دوی په قانونی واک میندلو اعتراف وکړی. خو هغه وخت د ځمکی خاوندانو وویل : ( بی خاونده ځمکه غیر مستحقو خلکو ته ورکړ شوه ) خو په ډیر افسوس باید ووایو چې نن د ځمکی د خاوندانو د اعتراف وخت راغلی دی او کله هم چې د اسرائیلو په موجودیت اعتراف وشو نو هغه به ټولی خبری رد شوی چې ویل کیده چې اسرائیلو په زور او زیاتی ځمکی نیولی دی او دا خورا خطرناکه خبره ده.

د دی لپاره چې دی خبری ته لار آواره شوی وی لاندی قدمونه واخیستل شو.

۱ : نشراتی قدم : وویل شو چې اسرائیل یو واقعیت دی عرب نشی کولای چې فلسطین تری بیرته واخیستلی شی.

۲ : جنګی قدم : د عربانو له خوا ځیني قهرمانۍ ښوول تر څو عربی ولس ته وښوول شي چې زمونږ روغه جوړه د تسلمیدو معنا نه لری که نه عربی ولس به نوی منلي

۳ : اقتصادي قدم : په عربی نړۍ په خاص ډول په هغه منطقه کې چې په اول قدم د جنګ سره مخ وه اقتصادي ستونزی راوستل شوی تر څو وښوول شي له اسرائیلو سره به په روغه جوړه عربی ولس له اقتصادي ستونزو څخه خلاص شی

۴ : سیاسي قدم : پدی معنا چې اسرائیلو د ډیرو عربی واکمنو ډلو واک په مستقیم او یا غیر مستقیم ډول پخپل لاس کې واخیست چې اوس همدا واکمن خلک د اسلامي ولسونو د معنویاتو او د دوی د لوړو اخلاقو او صفاتو د پرزولو لپاره کار کوی.

د نشراتی وسایلو په واسطه هڅه کیږی چې د اسرائیلو له خوا په زور نیول شوی ځمکه قانونی وښوول شی

دا خبره خورا د ژوری خيرنی غوښتنه کوي چې په يوه اسلامي هيواد کې يوه يهودی خپل نوم په اسلامي نوم بدل او په دولت کې هومره وردننه شو چې د وزيرانو تغير او تبديل په هکله به تری نظر غوښتل کي ده کله چې ده ته د وزرات مقام وړاندی شو نو د خپلو مشرانو د توصيې په اساس يې غوښتنه ونه منله ځکه د ده مقام له وزارت څخه لوړ وو

په يوه بل اسلامي هيواد کې د يهوديانو نوکران او د ماسونی تنظيم غړی واکمنۍ ته ورسيدل چې په وزيرانو کي يې يهوديان او هغه کسان وو چې د يهودی ښځو سره يې واده کړی وو دا ټول کارونه وروسته لدی چې د اسرائيلو دولت مينځ ته راغی پيښ شو اسرائيلی دولت وليدل چې د منطقی مرتجع قوتونه د دوی د اهدافو د پوره کولو څخه عاجز دی نو هغه وو چې په منطقه کيده د بدلونو راوستلو لپاره پښې رالوځی او هره ورځ يو عسکری انقلاب مينځ ته راځی

ج : د اسرائيلو راتلونکی سياسي وضع

خينی ناپوه او يا په اصطلاح ناپوه کړی شوی باور لری چې که اسرائيل په رسميت وپيژنو او روغه ورسره وکړو نو اسرائيل به پری قانع او خبره به خلاصه شی

خو د صيهونيزم تاريخ فطری اخلاق او کتابونه يې دا خبره په ډاګه ترديدوی

که تلمود- د صيهونستانو پرتوکولونه او هغه چې د هغوی په مقدسو کتابونو کې ليکل شوی دی ولوستل شی نو ليدونکی سترګی به روښانه شی

د اسرائيلو جمهور رئيس په ۱۳۹۷ هجری ، قمری کال کې وويل : چې د فلسطين خاوره زمونږ د نيکونو خاوره ده بيرته به يې ترلاسه کوو

د دی معنا دا ده چې يوازې دوی د دی ځمکی خاوندان دی هغه يې ندی چې ۱۴ پيړۍ په کې وروسته له اسلام څخه او څو پيړۍ پخوا له اسلام څخه اوسيدلی وو

که څه هم د اسرائیلو جمهور رئیس خو د مالی وضع په هکله خبری کولی خو مونږ وایو چې ربښتیا هم که د اسلامي نړۍ وضع همدا ډول پاتی شی نو یهودیان توان لری چې څه وغواړی هغه وکړی.
دوی کولای شی چې وړاندی ولاړ شی ځمکی پراخه او ټول نړیوال ضمانتونه شاته وغورځوی لکه څنګه یې چې پرون ټول نړیوال قوانین شاته وغورځول او دا ځکه چې نن مسلمانان د هغو ستونزو ، ګډوډیو ، وژنی او ټکونی په نتیجه کې چې د نوکرو واکمنانو په واسطه ورسره مخ دی د یهودیانو سره ګوتی نشی ماتولی.
خو زمونږ باور په لوی خدای همغه شان پوخ او د اسلام په بری مو پوره ډاډ او اطمینان دی " وان جندنا لهم الغالبون ( په یقین زمونږ لښکری خامخا بری منی دی )

## دریم } د اجتماعي اړخ له مخی

ا } خـور وور اولس :
اوسنیو او پخوانیو اختلافاتو دا اولس خور وور کړی دی - بی کوری او د کمپونو ژوند او بالآخره لوږی ، بربنډوالی او ناروغیو لاپسی تس نس کړی دی.
ب } منحل شوی اولس :
لدی کبله چې مختلفو ډلو لکه سیکولیزیزم ، کمونیزم ، وجودی ډلی او یهودیانو په کې کار کړی دی نو فکری خپلواکی یې له لاسه ورکړی او لدی کبله چې بی وطنی او ناتوانی او تش لاسي سره مخ شوی دی نو اخلاقی غوره والی یې هم ورک شوی دی.
د کورنیو موجودیت هم مخ په ورکیدو دی پدی معنا چې یوه کورنی په څو مملکتونو او ښاورنو کې جلا ، جلا ویشل شوی او هر یو غړی یې ( بی له هغو چې خدای پری رحم کړی ) په هر ځای کې د خیتی په خدمت کې لالهانده دی
ج } د یهودیانو په لاس کې اولس :

یهودي ابن جوریون وائي : د هغو عربو په وړاندي چې په اسرائیلو کې اوسیږي یوازې دري لاري دي او بس .

۱ : د یهودي دین منل

۲ : له وطن څخه وتل .

۳ : په کامله توګه له منځه تلل

ګولدامایر وائي : دا وخت به ډیر ژر راورسیږي چې مونږ وښیو هغه څوک چې یهودي خولۍ نه په سر کوي زمونږ په مینځ کې د اوسیدلو حق نلري .

هندي فیلسوف اکبر الله آبادي وائي : فرعون وغولیده چې بني اسرائیل یې وزورول ویې ربړول تر څو چې هغوی له الله څخه کومک وغوښت تاریخ تر اوسه د فرعون په بدو کړو لعنت وائي .

که مدرسي او تعلیمي مرکزونه یې د دوی د فکر د بدلولو لپاره جوړ کړي وای او د دوی معنوي وژني ته یې ملاتړلي وای چې له خپل اصلي هدف څخه بې لاري او د نورو په اوګو پیټي او بې وسي خلک ګرځیدلي وای نو نن به تاریخ په خپلو زرنیو پاڼو کې د علم او پوهي په هکله د فرعون ستاینه کوله د وژني او زورولو لعنت به یې پرې نه وایه .

نن یهودیان د همدي هدف د تر لاسه کولو له پاره تبلیغاتي وسایل او د زده کړي پروګرامونه پکار اچوي .

او د همدي هدف د ترلاسه کولو لپاره یې د هغو عربو چې په اسرائیلو کې اوسیږي د مالي ستونزو د حل لپاره اقتصادي سیاست په کار اچولي دي .

او د همدي سیاست په رڼا کې له عربي ځمکو څخه عرب شړي او د نړۍ له مختلفو ګوټونو څخه یهودیان هلته آبادوي تر څو د نیولو شوو ځمکو واک په پوره ډول د یهودیانو په لاس کې پریوځي .

## څلورم } راتلونکي فلسطین

د راتلونکي په هکله خبري شکمني وي ځکه غیب یوازې یو الله ته معلوم دي خو لوی الله جل جلاله مونږ ته واک راکړی دی چې ځان تیار کړو چې فرمائي :

وَأَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ وَمِنْ رِبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُونَ بِهِ عَدُوَّ اللَّهِ وَعَدُوَّكُمْ وَآخَرِينَ مِنْ دُونِهِمْ لَا تَعْلَمُونَهُمُ اللَّهُ يَعْلَمُهُمْ [الانفال : ۶۰]

( اوتاسې تر خپلې وسې وسې ډير زيات طاقت او تيار زين کړي اسونه دهغو دمقابلې لپاره برابر کړئ تر څوچې په دي وسيله د الله تعالى پردښمنانو، او خپلو دښمنانو او پرهغو نورو دښمنانو هيبت راولئ چې تاسې نه پيژنئ خو الله يې پيژني ) .

له توانائی او د آسونو له تړلو څخه تياری د يو داسی څه لپاره کيږی چې په راتلونکی کې ورته اميد وی او اميد کيدونکی شی د لاس ته راوړلو لپاره پکار ده چې لاس او پښی ووهل شی

همدا ډول لوی الله جل جلاله ځينی ثابت اصول وضع کړی دی چې د هغو په رڼا کې بايد ډير شيانو ته اميد وار واوسو چې فرمائی :

إِنَّ اللَّهَ لَا يُغَيِّرُ مَا بِقَوْمٍ حَتَّى يُغَيِّرُوا مَا بِأَنفُسِهِمْ [ د سوره رعد ۱۱ آيت ]

( الله پاک د يو قام حال نه بدلوی تر څو چې دوی خپل ځانونه بدل نکړی) .

تلك الايام نداو لها بين الناس [د سوره آل عمران آيت ]

( دا ورځی د خلکو په مينځ کې بدلوو رابدلوو) .

إِنْ تَنصُرُوا اللَّهَ يَنصُرْكُمْ وَيُثَبِّتْ أَقْدَامَكُمْ [د سوره محمد ۷ آيت ]

( که تاسی د الله [ دين ] سره مرسته وکړی الله به تاسی بريمن او پښی [ قدمونه ] به مو کلک کړی ) .

نو پدی اساس د لوی الله جل جلاله په مرسته بی لدی چې غيب پوهيدونکی ځانته ووايو کولای شو چې د روانو پيښو او د ايمان په رڼا کې د فلسطين د راتلونکو حالاتو په هکله جلا ، جلا خبری وکړو .

### ۱ - د روانو پيښو په رڼا کې راتلونکی فلسطين

د روانو پيښو په رڼا کې ويلی شو :

الف : فلسطين هيڅ راتلونکی نه لری ځکه صيهونيزم داسی قدمونه پورته کړی دی چې هيڅوک يې نشی ورانولی .

هر ځل نوی اهداف تر لاسه کوی چې د عربو غوښتنه هم نوی کیږی او پخوانی غوښتنی یې هیری شی

ښکاره مثال یې همدا دی چې اوس عرب وائی چې یهودیان هغه ځمکی یې چې له ۱۹۶۷ کال څخه وړاندی یې نیولې دی هغه د یهودیانو قانونی حق دی او هیڅ څوک یې تری غوښتلی نشی.

او که حالات همداسی پاتی شوه نو ویلای شو چې د یهودو د بل قدم د پورته کولو نه وروسته به د ۱۹۶۷ کال نیول شوی ځمکی د یهودو قانونی حق او عربان به د نوو ځمکو د پریښوولو غوښتنه کوی.

ملګری ملتونه هم د صیهونیزم او صلیبی دولتونو د فشار له لاسه د یهودیانو پراختیا غوښتنی سیاست قانونی ګڼی او نیول شوی ځمکی د دوی ملکیت ګڼی.

دا ملګری ملتونه وو چې په ۱۹۴۷ کال کې یې فلسطین د عربانو او یهودیانو تر مینځ وویشه پداسی حال کې چې فلسطین یوازې د عربو وطن وو او یهودو پکې د یوی لویشتی په اندازه هم ځمکه نه درلوده.

دا ملګری ملتونه وو چې ۳۴۲ نمبر پریکړه لیک یې اعلان کړ.

د دی پریکړه لیک په رڼا کې اسرائیل باید هغه ځمکی پریږدی چې د ۱۹۶۷ کال په جنګ کې یې نیولی دی او لدې وړاندی یې چې تول فلسطین نیولی دی هغه د یهودیانو قانونی او شرعی حق شو چې څوک یې تری نشی غوښتی.

سبا به اسرائیل نوی ځمکی ونیسی ملګری ملتونه به پریکړه وکړی چې اسرائیل باید نوی ځمکی خوشی کړی او پخوانی یې چې نیولی دی د دوی قانونی حق دی.

اخرنۍ خبره دا ده چې بیت المقدس د مسلمانانو لـومړی قبله او دریم حرم پکې واقع دی اسرائیلو خپل پای تخت وګرځاوو او اعلان یې وکړ چې په هیڅ ډول به یې له لاسه ورنکړی امریکا هم د اسرائیلو غوښتنه تائید او بیت المقدس یې د اسرائیلو د پایتخت په صفت وپیژندلو.

ب : راتلونکی د صیهونیزم ده
که وضعه په خپل حال پاتې شوه نو راتلونکی د صیهونیزم ده ځکه نړۍ د هغه چا په محور څرخي چې لاس او پښې وهي د بې لاسو ، بې پښو ، عاطلو او بې زړو خلکو په محور نه څرخي.
او ټولو ته ښکاره ده چې صیهونستان د پروګرام او پوره خیړنې په رڼا کې کار کوي عرب او مسلمانان یوازې چیغې وهي په خپلو مینځونو کې یو بل ته بد رد وائی او یوه د بل وژنې پسې متې راپورته کړې د مسلمانانو په مقابل کې غرور او تکبر لرې خو د کافرانو په وړاندې ټیټ او مات دي.
د صیهونیزم ورځنۍ هلې ځلې څرګندوي چې دوی یوازې په فلسطین اکتفاء نکوي دوی له فرات څخه تر نیله د لوی دولت خوب ګوري.
او ورپسې د ټولې نړۍ واکمنې یې لویه هیله ده.
عملي هلې ځلې یې څرګندوي چې دوی همیش خپل خوبونه رښتیا کړي دي.
په پخوانیو پروګرامونو کې بری یې څرګندوي چې په راتلونکو پروګرامونو کې به هم بریمن وي.
د دوی راتلونکی هیلې د مناحیم بیګن په باغی نومی کتاب کې داسې څرګندې شوې چې وائی : که یو سړی د ځینو له سر څخه لاندې پوړۍ ته راښکته کړې نو دې به هلې ځلې کوي چې باید بیرته همغه ځای ته ځان ورسوي له کوم ځای څخه چې تا راغورځولی دی.
او که هومره یې لاندې راوغورځوې چې د پوړیو له ساحې څخه ووزې نو دې به یوازې د دې هیله ولرې چې کاشکې پخوانی ځای ته ورنژدې شم دا یې هیریږي چې زه چیرته وم او څه راباندې تیر شو ؟
او دا همغه پروګرام دی چې اسرائیل یې نن د ټولو عربانو په هکله په کار اچوی نو ځکه ویلای شو چې :
د مصر ( کنانه ) خاوره د خطر سره مخ ده.
په مدینه منوره کې د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم جومات د خطر سره مخ دی خو هغه وخت چې :

۱ : زمونږ وضع په خپل حال پاتی شی.
۲ : او فطری قوانین خپل اثر له لاسه ورنکړی.
خو د دی لاره چې خبره پوره روښانه شوی وی باید لاندی کرښی هم ووایو.

**۲ - د ایمان په رڼا کې راتلونکی فلسطین**

د ایمان په رڼا کې څیړنه له هغې څیړنی سره هیڅ ورته والی نلری چې د پیښو په رڼا کې شوی وی ځکه :
۱ - فطری قوانین لوی خدای پیدا کړی دی هغه توان لری چې بدل او یا یې بی کاره کړی لکه چې د اور فطری خاصیت سونه ده خو کله چې خدای وغوښتل ابراهیم علیه السلام یې ونه سوزولی شو.
اوبه غرقول کوی
خو چې خدای وغوښته بحر یې دوه برخی کړ.
فَكَانَ كُلُّ فِرْقٍ كَالطَّوْدِ الْعَظِيمِ [د سوره شعراء ۶۳ آیت]
هره برخه یې د لوی غره په شان وه.
۲ - دا یو طبیعی قانون دی چې الله جل جلاله د هیڅ اولس په حال کې بدلون نه راولی تر څو چې هغوی خپل ځانونه بدل نکړی.
د دی خبری مفهوم مخالف دا دی :
که دوی خپل ځان بدل کړ نو الله جل جلاله به هم د دوی په وضع کې بدلون راولی.
دا مفهوم لاندی مبارک آیت ښه تائیدوی.
يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنْ تَنصُرُوا اللَّهَ يَنصُرْكُمْ وَيُثَبِّتْ أَقْدَامَكُمْ [محمد : ۷]
که تاسی د الله ( دین ) سره مرسته وکړۍ الله به تاسی بری من او پښی ( قدمونه ) به مو کلک کړی.
همدا د خلاصون لار ده.
او که مونږ غواړو چې فلسطین بیرته زمونږ لاس ته راشی نو لار یې همدا ده خو په لاندی شرطونو :

ا : باید له لوړې تر ښکته بدلون راشي له سر څخه تر پښو باید زمونږ په نفسونو کښېښېږ بدلون راشي تر څو الله زمونږ په حال کې بدلون راولي.
ب : دا بدلون باید د اسلام په رڼا کې وي.
ځکه هر بدلون چې بې د اسلام له ښوونو څخه راشي د خدای کومک ورسره نه وي او نه دا بدلون هغه بدلون دی چې لوی خدای يې غواړي.
مونږ ولیدل چې کله د فلسطین د نیولو پروګرام وو نو مسلمانان يې د جګړې له میدان نه بیرون او د یهودي دولت د اعلان څخه یې دری کاله مخکښې د اسلامي ټولنې پر ځای عربی ټولنه جوړه کړه او بیا یوازې عربی لښکري دجنګ ته ورداخلې شوی تر څو نوره اسلامي نړۍ بیرون پاتې شي.
او بیا يې د عربی فوځ په مینځ کې د هغو مسلمانانو په ضد توطئه وکړه چې د اسلامي عقیدې په اساس جنګیدل تر څو يې له جنګ څخه بهر کړل.
او لدې پخوا يې د اسلامي خلافت په ضد دسیسې جوړې کړې وې تر څو هغه هدف ترلاسه شي چې وائي : یهودیان باید د فلسطین په لار کې ټول خنډونه له مینځه یوسي.
نو ځکه وایو :
فلسطین هغه وخت له لاسه ولاړ چې مخلص مجاهدین د جنګ له ډګر څخه بهر شو نو یوازې هغه وخت به بیرته لاس ته راشي چې د اسلام سربښندونکي د جنګ ډګر ته داخل شي.
اسلام برسیره په هغه چې مونږ وړاندې تشریح کړې لاندې شیان هم لري.
هغه عقیده لري چې د جګړو وضعه بدلولای او نتایج یې اړولای شي بشري طاقت لري، سیاسي زور لري، ځکه د دې په ځای چې څو ګوته په شمیر بې وسې عربي دولتونه د جګړې تر شاه وي ټوله اسلامي نړۍ به د جګړې تر شاه او ملاتړې وي.
مالي زور لري د ټولې اسلامي نړۍ شتمنې به چې د ټولې دنیا څخه زیاته ده د دې جنګ نه ځار وي او د خدای هغه کومک به هم رانښکته شي چې وعده يې شوې ده او رښتینې وعده ده.

بَلَى إِنْ تَصْبِرُوا وَتَتَّقُوا وَيَأْتُوكُمْ مِنْ فَوْرِهِمْ هَذَا يُمْدِدْكُمْ رَبُّكُمْ بِخَمْسَةِ آلَافٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ مُسَوِّمِينَ()وَمَا جَعَلَهُ اللَّهُ إِلَّا بُشْرَى لَكُمْ وَلِتَطْمَئِنَّ قُلُوبُكُمْ بِهِ وَمَا النَّصْرُ إِلَّا مِنْ عِنْدِ اللَّهِ الْعَزِيزِ الْحَكِيمِ [ سوره آل عمران ۱۲۵ - ۱۲۶ آيتونه ]

(بېشکه، که تاسې د زغم په لرلو له الله جل جلاله څخه په وېرېدو کار وکړئ نو په کومه شېبه کې چې دښمنان درباندې يرغل وکړي بېدو په هماغه شېبه کې به ستاسې رب (درې زره نه) د پنځو زرو نښانه دارو پښتو په وسيله ر سره مرسته وکړي - دا خبره الله جل جلاله د دې له پاره درته کړېده چې تاسې خوشاله شئ او ستاې زړونه ډاډه شي - برلاسي او مرسته هرڅه چې دي د هغه الله جل جلاله له خوا دي چې ډېر زورور او پوه ليدونکی دی )

## د تعليمي پروګرامونو په واسطه د يهودي کولو هلې ځلې په يروشلم کې عبري پوهنتون

رمزی : هيله ده چې د پوهنتون اداری دفتر راوښی؟

مائير : مهرباني وکړی چپ شه .

معذرت غواړم چې تاسی ته می وويل چې چپ شه هغه وخت مونږ د درس په خونه کې وو او هلته خبری بندی بيا وويل : زما نوم مائير دي .

رمزی : مشرف شوم زما نوم رمزی دی .

مائير : مشرف شوم

رمزی : مائير وروره : ته د دی پوهنتون پخوانی زده کوونکی يې .

مائير : هو ! د دريم ټولګی محصل يم خيال کوم چې تاسی نوی راغلی يې ؟

رمزی : هو ! زه نوی راغلی يم غواړم چې ځان داخل کړم .

مائير : د کوم مضمون د لوستلو سره مينه لرې .

رمزی : تاريخ او عربی ژبه سره

مائير : نو ته غواړی چې د ليسی معلمه شي .

رمزی : هو ! تدريس می ډير زيات خوښيږی

مائیر : مهربانی وکړی زما سره راځی چې د (ثبت نام) ځانګی ته ولاړو شو.
رمزی : دا څه ګورم ؟ دا ټول خک نوبت ته منتظر دی ؟
مائیر : هو ! دا ټول خلک د نوبت انتظار لری ، نن د ثبت نام لومړۍ ورځ ده او خورا زیات زده کوونکی د هیواد د مختلفو ګوټونو څخه راغلی دی.
رمزی وروره ! دا خبره هم له یاده مه وباسه تاسی غواړی چې د ادبیاتو په پوهنځی کې ثبت نام (نوم لیکل) وکړی چې دا تر ټولو لوی پوهنځی دی.
رمزی : ولی ورته ډیر خلک راځی ؟
لدی کبله خو به ډیر ورته خلک نه راځی چې د دی پوهنځی فارغانو ته د کار زمینه ډیره برابره ده ؟
مائیر : هو ! له همدی کبله.
خوښه دی نده د دی په ځای چې دلته په لین کې یو سافت ودرېږو په لاندی منزل کې چای وڅښو له هغې نجلی چې ستا په مخکې په لین کې ولاړه ده هیله وکړه چې ستا ځای درته وژغوری.
رمزی : زه تری هیله وکړم او څه ورته ووایم ؟
مائیر : ورته ووایه چې زه به وروسته له لسو دقیقو راشم.
رمزی : اجازه راکوی ؟
راحیل : هو ! ما ته څه امر او خدمت شته ؟
رمزی : غوښتل می چې له تاسی هیله وکړم چې تاپسی زما ځای او نوبت دی هیله ده چې نوبت می راته وساتی. زه به پس له لسو دقیقو راشم.
راحیل : ډیره خوښیږم چې ستاسی نوبت وساتم ولاړ شی او کله مو چې خوښه شوه بیرته راشی.
رمزی : مائیره وروره ! تاسی د کوم ځای یې ؟
مائیر : د تل ابیب.
دواړه زده کوونکی د یهودی مائیر په پیسو په چای څښلو مصروف شول او په خورا ګرمو خبرو اترو مشغول شوه چې هوښیار مائیر په ډیری مینی او محبت سره ناپوه رمزی ته معلومات ورکول.

د خبرو په دوران کې یې ورته وویل : مائیر ! د ادبیاتو پوهنځی نه یوازې دا چې لوی پوهنځی دی بلکه ډیر پخوانی پوهنځی هم دی او خورا زیاتی څانګی لري مهمی څانګی یې عبارت دی له :

د یهودی علومو څانګه ، پدی څانګه کې کولای شي چې د یهودی علومو مربوط ټول علوم ولولی لکه عبرانی ژبه ، عبرانی ادبیات ، د تورات علوم ، د تلمود علوم ، د اسرائیلی اولس تاریخ او په ننه نۍ نړۍ کې یهودیان او داسی نور.

رمزی : نو زه به د همدی څانګی زده کړی وم ځکه عبرابی ژبه په همدی څانګه کې تدریس کیږی ..

زمري وویل : مائیره وروره ! خبري اوږی شوی ستاسی معلوماتو راکړي څخه ډیره مننه کوم ډیر خوښ شوم چې له تاسی سره می پیژندګلوی وشوه فکر کوم چې وخت به پوره وی باید لین ته ولاړ شم.

فکر کوم چې همدا زما ځای دی مننه !

راحیل : زما نوم راحیل دی.

مائیر : په مخ دی ښه رمزی ! هیله ده چې سباء ته دی وګورم هیله ده چې زما کوټی ته راشی زه په لیلیه کې اوسیږم.

رمزی : ډیره مننه ، ان شاء الله ډیر ژر به راشم.

فکر کوم چې لړ ، تر لږه به نیم ساعت نور هم ولاړ وو.

راحیل : پښی می ستړی شوی زه د یو ساعت څخه زیاته ولاړه یم.

رمزی : که غواړی چې دمه وکړی ولاړه شه او په هغې چوکۍ کینه.

د یهودۍ پیغلی راحیل او رمزی تر مینځ مرکه دوام پیدا کوی ترڅو چې رمزی وویل : ډیره مننه کوم چې ماته مو خورا مهم او زیات معلومات راکړه.

راحیل : ما خپله وظیفه سرته ورسوله د مننی او تشکر ضرورت نشته.

رمزی : د خدای په امان په ټولګی کې به سره وګورو.

راحیل : د خدای په آمان

رمزی د یوه عربی ملګری په لور ګوری او ورته وائی :

محمده ! که ربښتیا ووایم زه دلته روحا آرام شوم د پوهنتون فضاء می ډیره خوښه شوه ته دی خبری ته متوجه شه چې ما په لومړی ورځ دوه ملګری ( مائیر او راحیل ) پیدا کړه او ډیر معلومات می تری تر لاسه کړه.

## دویم فصل ( څپرکی )

## د ماوراء النهر او قفقاز مسلمانان

ماوراء النهر : هغو هیوادونو ته ویل کیږی چې د جیحون ( آمو ) سیند پورې غاړې ته پراته دی.

دا خورا پراخه ساحه ده او اوږد تاریخي ارزښت لری.

دا هیوادونه چې په ترکستان شهرت لری د لومړی ځل لپاره هغه وخت د اسلام له نوم سره اشنا شول چې د اموی خلیفه عبدالملک بن مروان په زمانه کې د ۸۸ هـ کال چې د ۷۰۶ م کال سره سمون خوری د قتیبه بن مسلم الباهلی په مشرۍ اسلامي لښکری د آمو له سیند څخه ورتیری او د خوارزم او ثمرقند ښارونه یې فتحه او ورپسی د نورو هیوادونو د فتحی سلسلی دوام پیدا کړ.

هغه هیوادونه چې اوس هلته جوړ شوی دی په لاندی ډول دی :

۱ : اوزبکستان
۲ : قزاقستان
۳ : تاجکستان
۴ : ترکمانستان
۵ : قرغیزستان

**قفقاز :**

قفقاز غرنۍ برخه ده چې ۱۲۰۰ کیلو متره اوږده پرته ده چې د غرونو لوړوالی یې تر ( ۵۶۳۰) مترو پورې رسیږی دا غرونه د اروپا او اسیا تر مینځ لوړ دیوالونه دی چې دوه وچې یوه له بلې څخه جلا کوی.

مسلمانان د لومړی ځل لپاره هلته د دو یم خلیفه حضرت عمر رضی الله عنه د خلافت په دوران کې په ۲۲ هجری کال کې د سراقه بن عمرو په مشرۍ ورسیدل ، سراقه آذر بائیجان فتحه او د نورو ځایونو د نیولو لپاره

يې ګړندی قدمونه واخيستل چې بالاخره ډیر ژر د قفقاز ټول چاپيريال اسلامي چاپيريال وګرځيده.

د قفقاز هيوادونه

د قفقاز په چاپيريال کې اوس لاندی دری مستقل او خپلواک هيوادونه دی:

اذر بائيجان - آرمينيا - جورجيا

د روسی د فدرال غړی جمهوريتونه:

داغستان - چيچن - انګوشتيا - شمالی اوستيا - کبارديا - کراتچای الشرکسيه - اويجه

د تاريخ په اوږدو کې:

وروسته لدی چې اسلام په ماوراء النهر او د قفقاز په څنډو کې واکمن او هلته د اوږدی زمانی لپاره د علم او پوهی څراغ روښانه وساته چې زياته څيړنه به يې په راتلونکو پاڼو کې وشي.

د ۱۵۵۲ م کال نه وروسته د روسی قيصر واکمن څلورم ايفان د روسی امپراطورۍ د جوړولو په تکل د اسلامي خاوری په لور لاس اوږد او د لومړی ځل لپاره يې قازان او ورپسی يې بشکريا ، استراخان او ورپسی نور هيوادونه يو د بل پسی ونيول تر څو د ۱۹۰۰کال پوری د روسی لويه امپراطوری جوړه او د ماوراء النهر او قفقاز ټول اسلامي هيوادونه يې ونيول.

## د کمونيزم په غيږ کې

د ترکستان او قفقاز مسلمانان د تزاری روسانو سره لاس په ګريوان وو چې د ۱۹۱۷ کال د اکتوبر انقلاب مينځ ته راغی.

مسلمانانو ګومان وکړ چې د سترې تيا توره شپه يې مخ په تيريدو او روڼ سهار يې راختونکی دی.

کمونستانو د مسلمانانو د غولولو او په لومړی قدم کې د چپ ساتلو لپاره د خپل هميشنی عادت نه کار واخيست او په درواغو يې رنګ په رنګ وعدی ورکړی تر ټولو لويه وعده يې هغه درواغجنه ابلاغيه وه چې د (

۱۹۱۷ کال د دسمبر په ۷ نیټه د مرکزي کمیټې له خوا د لینن او ستالین په لاس لیک په لاندې متن خپره شوه
د زور او وحشت سرمایه داره امپراطوري مخ په نړېدو ده - د غلو او داړه مارو استعمار ګرو د پښو لاندې د اور لمبې راپورته شوې دي
ای د شرق او روسي مسلمانانو ! پدغو حساسو حالاتو کې زمونږ سترګې ستاسې په لور دي تاسې چې خورا زحمتونه او تکلیفونه ګالې خو هغه څه ندي درکړای شوي چې تاسې یې وړ یاست !
ای د روسي مسلمانانو ! د فولجا د غاړو او د قرم تتاریانو ! د سایبریا او ترکستان قرغیزو او سارتینو ! د قفقاز تتارو او ترکانو ! د قفقاز د غره زمریانو !
ای هغو خلکو چې ستاسې د جوماتونو او هدیرو بې احترامي شوې ده ، ستاسې عقیدو او رواجونو ته په سپکه کتل شوي دي د روسي پخوانیو پاچایانو او واکمنانو ستاسې مقدساتو ته په سپکه کتلي دي
مونږ به ستاسې د عقیدې رواجونو او قومي اړیکو آزادۍ پر ځای کړو له همدې نن څخه ستاسې فرهنګي هلې ځلې آزادې دي چې هیڅوک پرې تیرې نشي کولی نو راځۍ په خپله خوښه مو خپل ژوند جوړ کړئ تاسې آزاد یې او هیڅوک ستاسې د غوښتنو مخالفت نشي کولی
ملګرو ! راځۍ د آزادۍ او مساوات په لور په کلکه ګډ قدمونه واخلو زمونږ بیرغ د نړۍ په هر ګوټ کې د مظلومو اولسونو لپاره آزادي غواړي
ای د روسي اوسیدونکو مسلمانانو ! ای د شرق مسلمانانو ! راځۍ مونږ او تاسې په هغه لار ولاړ شو چې نړۍ ته نوی ژوند ورپه برخه کړو مونږ ستاسې مرستې او ملاتړ ته سترګې په لار او ښه راغلاست وایو
اسلامي هیوادونو د دوی غوښتنې ومنلې او د روسي د پخوانیو واکدارانو څخه یې بیزاري اعلان کړه
خو دا چې د مظلومو لپاره آزادي غوښتونکې نظام څه ورسره وکړل ؟
راځۍ په لاندې کرښو کې یې ووایو :

د ۱۹۱۸ کال د اپريل په مياشت کې يعنی د پورتنی ابلاغيی څخه فقط څلور مياشتی وروسته لينن روسی ټانګونو ، توپونو او الوتکو ته امر وکړ چې په اسلامي خاورو حمله يوسی - هر څه چې په وړاندی درتلل تس نس او نابود يې کړی

د همدی کال تر آخره يې د ايديل اورال جمهوريت شمالی قفقاز ، او خوقند د خپل کنترول لاندی راوستل

د قرم برخی د داخلی مقاومتونو له کبله ژر فتحه نشوی

په ۱۹۱۹ کال کې يې د (اش ازدو) جمهوريت ونيو

د ۱۹۲۰ کال د اپريل په مياشت کې يې ټول قرم ونيو او بيا يې په آذربايجان حمله وکړه او د څه جنګونو وروسته يې ونيو

د ۱۹۲۰کال تر آخره يې ټوله خيوه ونيوه که څه هم د خيوی اوسيدونکی خلکو د سرونو په قيمت له خپلی آزادۍ څخه دفاع وکړه

په ۱۹۲۱ کال کې يې بيا د بخاری په جمهوريت حمله وکړه هلته خورا خونړۍ جنګ وشو د امام بخاری رحمه الله عليه لمسيانو د رسول اکرم صلی الله عليه وسلم له ميراث څخه په خپلو وينو دفاع وکړه خو دوی يوازې ونشو کړای چې د سرو لښکرو د لوی سيلاب مخه بنده کړی د دوی منظمی عسکری قواوی ماتی شوی خو ګوريلائی جنګونو ته يې پوره لس کاله بی لدی چې د اسلامي نړۍ له لوري ورسره څه لاس او کومک وشی دوام ورکړ

د ازفيستيا جريدی د ۱۹۲۲ کال د جولای په مياشت کې د ملګری کالينين له خوا د (قرم) د لوږی په هکله لاندی معلومات خپور کړ

بايد ووايم چې لوږه څکه منطقی ته راغله چې روسانو د قرم ټول خوراکی مواد نورو ځايونو ته نقل کړل تر څو دوی تسليمۍ ته مجبور شی

د جنوری په مياشت کې ۳۰۲۰۰ تنه له لوږی سره مخ وو چې ۱۴۴۱۳ تنه يې له لوږی مړه شو خو د مارچ په مياشت کې ۳۷۹۰۰۰ تنه د لوږی سره مخ چې ۱۹۹۰۲ تری مړه شوه

د اپریل په میاشت کې ۳۷۷۰۰۰ تنه د لوږې سره مخ چې (۱۲۷۵۴) تنه تری مړه او د جون په میاشت کې ۳۹۲۰۷۲ تنه د لوږې سره مخ وه د دی میاشتی د مړو شوو کسانو شمیر یې ندی ښوولی.

په ۱۹۱۷ کال کې قرم پنځه میلیونه نفوس درلود خو په ۱۹۴۰ کال کې یوازې ځلور لکه کسان یعنی د لسو فیصدو څخه هم لږ خلک ژوندی وو.

۱۵۵۸ جوماتونه یې درلودل خو اوس یوازې څه کم (سل) جوماتونه پاتی دی.

وروسته لدی چې د کمونیستی انقلاب ریښی ټینګی شوی نو د اسلامي خاورو اصلی اوسیدونکی یې وشړل تر څو د هغوی ځای روسان ونیسی.

د ازهر پوهنتون او د اسلامي مبارزی ټولنی د رئیس په هغه لیک کې چې ملګرو ملتونو ته یې استولی دی له کمونیزم څخه د مهاجیرینو په حواله یې لاندی حقایق په ګوته کړی دي.

الف } په ۱۹۳۴ کال کې یې یوازې په ترکستان کې ۱۰۰۰۰۰ مسلمانان ووژل دری لکه یې له کورونو وشړل او دری میلیونه خلک له لوږې څخه مړه شول ځکه د دوی په شتو کمونستانو قبضه وکړه او هغو عیسائی مذهبو خلکو ته یې ورکړه چې اسلامي خاورو ته یې راوستلی وو د ۱۹۳۷ - ۱۹۳۹ کلونو په مینځ کې پنځه لکه مسلمانان بندیان کړل چې مشران یې تری اعدام او پاتی یې له خپلو کورونو څخه وشړل.

لاندی مشهور خلک یې ووژل :

شیخ برهان البخاری قاضی القضات ، د بخاری مفتی شیخ خان مروان شیخ عبدالمطلب د املا ، شیخ محسوم متولی ، شیخ عبدالاحد دار خان ، شیخ حاجی ملا یعقوب ، شیخ ملا عبدالکریم

د بخاری جمهور رئیس خواجه نیاز ، صدر اعظم مولانا ثابت ، د الماتا د منطقی مشر حاجی شریف ، د کاشغر مشر عظمان اوراز

د دربار وزیر یونس بک د تجارت وزیر ابو محسن ، د فواید عامی وزیر عبدالله دا ملا او د ولسی جرګی رئیس طاهر بک

په ۱۹۴۹ کال کې دوه زره کسان وتښتیدل چې دولس سوه یې په لار کې مړه شوه او په ۱۹۵۰ کال کې شل زره مسلمانان وتښتیدل چې روسانو تری ۷۰۰۰ ووژل .

ب ) په قرم کې :

په ۱۹۲۱ کال کې ( یو لک ) مسلمانان له لوږې مړه شوه په ۱۹۲۸ کال کې یې جمهور رئیس ولی ابراهیم او د هغه ټول وزیران ووژل په ۱۹۳۰ کال کې یې هم جمهور رئیس محمد قوباشی او د هغه ټول وزیران ووژل ، او په ۱۹۳۷ کال کې یې هم هغه وخت جمهور رئیس الیاس طرخان او د هغه د کابینې ټول غړی ووژل چې د مارشال تحاتشنفسکی د محاکمې په دوران کې یې دوی ماسکو ته غوښتی وو .

## د شوروي اتحاد ړنګیدل

د ۱۹۹۱کال د اګست د میاشتې پـه ۲۴ نیټه پـه روسیه کې د کمونیزم ۷۳ کلنه واکمنی پای تـه ورسیده او کمونست حزب په روسیه کې غیر قانون وګرځید د حزب له ړنګیدلو سره جوخت هغه اوسپنیزم دیوال هم ونړید چې د شوروي اتحاد په نوم جوړ شوی وو په لومړی سر کې د بالتیک جمهوریتونه جلاء او ورپسی هر جمهوریت خپله لار ونیوله چې په نتیجه کې یې لاندی اسلامي هیوادونه د خپلواکو هیوادونو په کتار کې د نړۍ د نقشې په مخ یو ځل بیا ولیکل شو .

**۱ - د ازبکستان جمهوریت** :

د منځنی اسیا مهم او ستراتیژیک هیواد دی مساحت یې ۴۷۸۰۰۰ کیلو متر مربع او ۲۲ میلیونه اوسیدونکی لری ۹۰ فیصده خلک یې اهل سنت مسلمانان او نور یې عیسویان د قومي جوړښت له مخی (۷۵٪ ) خلک اوزبک ۱۰ ٪ روسان او پاتی ۱۵ ٪ نور کوچنی قومونه دی

مهم ښارونه یې عبارت دی له : تاشکند ، سمرقند ، خیوه او بخاری څخه

ازبکستان یو زراعتی هیواد دی چې د پنبې او مالوچو حاصلات یې زښت زیات او د ټول شوروي اتحاد ۵۰٪ وریجی او ( ۶۸ ٪) مالوچ یې

تولیدول د تیلو او ګازو ډیری لویې چینی هم لری ، د ډبرو سکاره ، مس ، سره زر ، اوسپنه او سپین زر هم په پوره اندازه لری.

ازبکستان ته اسلام په ۸۸ هـ ق کال کې هغه وخت ورغی چې د اموی خلیفه په زمانه کې قتیبه بن مسلم الباهلی د بیکند ، بخاری ، خوارزم او ثمرقند ښارونه ونیول او بیا یې په همغه شان مخ په وړاندی قدمونه واخیستل تر څو د ترکستان ټولی لمنی د اسلام په سپیڅلی دین روښانه شوی.

ازبکستان د اسلام لپاره ته هیریدونکی خدمتونه کړی او ستری نابغی یې ټولنی ته وړاندی کړی دی د بخاری لوی او ستر کتاب چې له قرآن کریم وروسته مقام او درجه لری او نور علمی ستر دینی کتابونه د همدغی خاوری د اسلام د پتنګانو د لاس نښی دی.

ازبکستان هم د منځنۍ اسیا د نورو هیوادونو په شان د شوروي اتحاد له ړنګیدلو وروسته د یو خپلواک جمهوریت په توګه د نړۍ په نقشه کې ښکاره شو خو د کمونیزم له وتلو نه کوم نوی بدلون پکښی رانه غی بلکې یوازې د کمونیستی حزب رشیدوف پر ځای اسلام کریموف چې د کمونست حزب پخوانی غړی وو د هیواد مشر او د ۱۹۹۱ کال د دسمبر د میاشتی په ۲۹ نیټه یې خپلواکی اعلان او د کمونستی حزب نوم یې د خلکو دیموکراتیک حزب په نوم بدل کړ.

خو هلته چې د اسلام ریښی ډیری ژوری وی مسلمانان هم خورا فعال دی او د ( اسلامي نهضت ) په نوم چې شیخ عبدالله عطائی مشری په غاړه لری د اسلامي شریعت د پوره تطبیق لپاره هلی ځلی کوی.

**۲ - قزاقستان** :

قزاقستان د ماوراء النهر تر ټولو لوی اسلامي هیواد دی ۲۷۱۷۳۰۰ کیلو متره مساحت لری.

۱۱۰۰۰ سیندونه او نهرونه لری چې تر ټولو مهم یې د ( سیحون ) سیند دی ۱۷۵ میلیونه نفوس لری چې ( ۶۰ ٪ ) یې مذهبی مسلمانان او ۴۰ ٪ یې ارتودوکس عیسویان دی.

د قومیت له مخې ( ۴۵ ٪ ) قزاق ، ۳۵ ٪ روسان او پاتې نور خلک پکې اوکران ، اوزبک ، قرغیزیان او تتاریان اوسیږي.
مهم ښارونه یې له الماتې ، اکمول ، کاراغنده ، قزیل اوردا ، نوفی اوزین اسنجاب ، فریاب او د اور نبوغ څخه عبارت دي.
مالوچ یې مهم پیداوار دی ، مڼې هم پکښې ډیرې دي د پخواني شوروي اتحاد ۲۵ ٪ زراعتي ځمکه د قزاقستان ځمکه وه د څارویو پالنه هم پکې خورا ډیره ده د یوه کال په اوږدو کې ( ۲۸ ) میلیونه ټنه د ډبرو سکاره بازار ته وړاندې کوي چې دا اندازه د هغو ډبرو سکرو څخه چې ( انګلستان ، ایټالیا ، او یونان ) یې بازار ته وړاندې کوي اته برخې زیاته ده او په همدې توګه د اوسپنې مسو ، او ګوګړو سرو زرو ، سپینو زرو او نورو نفیسو معدنونو پراخې خزانې لري.
هره ورځ نیم میلیون بوشکې تیل تولیدوي او هڅه کوي چې د امریکائي شرکتونو په واسطه تر راتلونکو څو کلونو په اوږدو کې خپل تولیدات ډیرې لوړې اندازې ته ورسوي.
د سابقه شوروي اتحاد د زروی او کیمیاوي وسلو د ( ۵ او ۱۰ ٪ ) تر مینځ ذخیرې یې پدې هیواد کې دي.
اسلام ورته په دری یمه هجري پیړۍ کې ورغلی خو پراخوالی یې د بخارې ثمرقند او خوقند د علماوو او مسلمانو تاجرانو په واسطه په ۱۴ میلادي پیړۍ کې میندلی دی.
ټول قازاق قوم له اسلام سره پوره مینه لري خو په خورا ناخوالۍ سره باید ووایو چې د اسلام په هکله د دوی پوهه ډیر لږ او د هیڅ برابر ده.
له کمونستي واکمنۍ وروسته ټولو واکمنانو په ځانګړې توګه ستالین هڅه وکړه چې ټول قازاقستان په خاص ډول په شمالي برخو کې د مسلمانانو اکثریت په اقلیت بدل او نور مختلف قومونه ورته راوړي.
د هغه سر شمارۍ له مخې چې په (۱۹۷۹ کال کې ښکاره شوه چې په ټول هیواد کې اوس یوازې ۷,۵ میلیونه قزاق اوسیږي نور پاتې ۶,۲ میلیونه

روسان ، ۹۵۶۰۰۰ المانیان ، ۹۸۵۰۰۰ اکران ، ۳۳۲۰۰۰ اوزبک او پاتی خلک له ( ۲۵ ) جلا ، جلا قومونو او نسلونو څخه دی چې له هری لوری یې

دی اسلامي خاوری ته په زور راوړی دی.

د شوروي اتحاد له ړنګیدلو وروسته قزاقستان د ۱۹۹۱ کال د دسمبر د میاشتی په ۱۶ نیټه خپله آزادی اعلان او نور سلطان نزار بایف چې له ګوربا چوف سره یې نژدی اړیکی لرلی د واکمن په توګه راښکاره شو.

قزاقان د ده په هکله عقیده لری چې دی روسانو ته ډیر نژدی دی خو نور سلطان چې یو هوښیا او مدبر سیاست پوه دی وائی چې مونږ اوس په روانو حالاتو کېد روسانو د مخالفت توان نلرو باید له حالاتو سره جوړ او خپل مستقل موجودیت ته وده ورکړو.

قزاقستان ۱۰۸ اس ، اس ۸۱ ډوله توغندی لری چې اتومی وسله له ځان سره وړای شي نو ځکه روسیه ، چین او امریکا هیله من دی چې قزاقستان د ناخوښو یعنی اسلامي اصول پرستو په واک کېورنه شی.

**۳ - تاجکستان :**

د تاجکستان په جنوب کې افغانستان ، په شمال کې قرغیزستان او ازبکستان په شرق کې چین او په لویدیځه برخه کې یې ازبکستان پروت دی په جنوب ختیځه برخه کې له پاکستان سره هم نړۍ شریکه پوله لری.

د پامیر لوړ غر د دی هیواد په جنوب او جنوب شرقی برخو کې پروت دی.

شپږ میلیونه نفوس لری چې ۷۸ ٪ یې حنفی اهل سنت دی د بدخشان په لوړو برخو کې ډیر لږ د اسماعیلی عقیدی خلک هم میشته دی.

مهم ښارونه یې عبارت دی له :

دوشنبه : اوسنی پلازمینه یې ده چې شپږ لکۀ خلک پـه کې اوسیږی ۲۵٪ یې روسان دی - ترمذ : دا خورا لوی تاریخي ښار دی چې امام ترمذی د حدیثو د مشهور کتاب لیکونکی هم د همدی ښار وو- خوقند چې

اوس ورته لینن آباد وایه شي - کورغان تپه چې اوس د اسلامي نهضت مرکز ګڼل کیږي - کولاب - کاکانو فیتشي آباد :

اسلام ورته د اموي فاتحینو په واسطه په ۷۰۶ م کال کې ورسید او په نهم او لسم میلادي پیړۍ کښلته د سامانینو دولت جوړ او د اسلام د پرمختګ لپاره ګړندي قدمونه واخیستل شو

تاجکان افتخار لري چې امام بخاري ، امام ترمذي ، خوارزمي ، الفردوسي ، عمر الخیام او مشهور فلک پوه ابو محمود الخوقندي دوی ته منسوب دي

په ۱۸۸۰ کال کې روسي واکمنو د قهرمان مجاهد دوکچي ایشان له شهادت وروسته ونیو او ۱۹۱۷ له انقلاب وروسته تاجکان پدې هیله چې آزادي به ترلاسه کړي د کمونستانو په وعدو وغولیدل او د انقلاب ملاتړ یې وکړ خو ډیر ژر ښکاره شوه چې کمونستان له قیصریانو څخه هم ډیر وحشیان دي

هغه وو چې په ۱۹۲۱کال کې د ابراهیم بیګ ، مخدوم فضیل ، او دولت بیګ په مشرۍ د کمونستانو په مقابل کې قیام وشو چې د بسماچ په نوم یې شهرت پیدا کړ

کمونستانو خورا په وحشت سره مقاومت وټکاوو د جهاد مشران افغانستان ته مهاجر شول خو د افغانستان پاچا محمد نادر شاه ټول بیرته روسانو ته لاس ترلي وسپارل ټول یې شهیدان کړل

تاجکان له اسلام سره نه شلیدونکې اړیکې لري.نو ځکه یې د کمونیزم د واکمنۍ په دوران کې هم خپل اسلام ژوندی ساتلی او اسلامي شعایر یې په پټه زده کول

د شوروي اتحاد له اړنګیدلو وروسته د ۱۹۹۱ کال د اګست د میاشتې د میاشتې په ۲۵ نیټه د تاجکستان پارلمان خپله آزادي اعلان کړه د ۱۹۹۲ کال د دسمبر د میاشتې د ۶ نیټې له انتخاباتو وروسته په کې ائتلافي حکومت جوړ شو چې د اسلامي نهضت غړو هم پکې ګډون درلود خو د

روسانو د ناخوښۍ له کبله وروسته لدې چې روسانو پکې مستقیمه مداخله وکړه د ۱۹۹۳ د ستمبر د میاشتې په لسمه نیټه له منځه ولاړ او په تاجکستان کې کورنۍ جګړې شروع شوې د تاجکستان د صدارت معاون دولت عثمانوف او د اسلامي نهضت نور مشران اکبر توره جان زاده ، محمد شریف همت زاده او د اسلامي فکر لوی قائد سید عبدالله نوري پاکستان ، افغانستان او ایران ته مهاجر شول د داخلي جګړې د حل لپاره مختلفې هلې ځلې وشوې ترڅو د ۱۹۹۵ کال د فروري د میاشتې په ۶ نیټه دواړه طرفونه د جنګ په ودرولو د مهاجرینو په بیرته تګ ، او د یوې کنترول کوونکې اداري په جوړولو موافق شو چې په نتیجه کې یې د اسلامي نهضت ټول مشران تاجکستان ته ولاړل.

**۴ - ترکمنستان**

دا اسلامي هیواد د جیحون ( آمو ) سیند په ختیځه برخه کې پروت دی چې جنوبي پولې یې له ایران او افغانستان ، شمالي پولې یې له ازبکستان او قزاقستان ، لویدیځې پولې یې د قزوین په بحریه او ختیځې پولې یې له ازبکستان او افغانستان سره تړلې دي.

۴۸۸۰۰۰ کیلو متره مساحت لري چې ۹۰ ٪ یې صحرا ده ۴,۵ میلیونه نفوس لري مطلق اکثریت یې حنفي مسلمانان دي او ډیر لږ شیعه ګان هم پکې شته دي - مهم ښارونه یې عبارت دي له.

عشق آباد پلازمینه - مرو - کرازنوفودسک- امده - بیهق چې د حدیثو مشهور امام بیهقي همدې ښار ته منسوب دی - سرخس د حنفي فقهې مشهور عالم او امام سرخسي د همدې ښار اوسیدونکی وو - نساء د حدیثو مشهور کتاب نسائي شریف د همدې ښار یوه پیاوړي عالم ترتیب کړی وو ترکمنستان د قالینو لوئې کارخانې لري د وریښمو او مالوچو ښه مصنوعات لري.

د سولو ګاز په برخه کې د نړۍ څلورم هیواد دی او د پخوانی شوروي اتحاد په هیوادونو کې له روسی وروسته تر هر چا نفت ډیر لری ګوګرد او نور معدنونه هم ښه ډیر لری

ترکمنستان ته اسلام د دویم خلیفه حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه په زمانه کې په ۱۸ هجری کال کې راغی او تر ۲۴ هجری کال پوری ټول ترکمنستان د اسلام په مبارک دین روښانه شوی وو او د تاریخ په اوږدو کې د اسلام د خپرونی مرکز او جوماتونو ژاله وه خو کله چې په ۱۸۸۲ کال کې روسانو ونیولو او ورپسی کمونستان. واکمن شول نو بالاخره په ټول ترکمنستان کې یوازې څلور جوماتونه پاتی او پلازمینی عشق آباد یو جومات هم نه درلود.

د کمونیزم د وحشت له ختمیدلو وروسته ترکمنانو هڅه وکړه چې له نوری نړۍ سره یې اړیکی ټینګی او خپل ګاز د ترکی له لاری اروپا ته ولیږدوی.

د ترکمنستان جمهور رئیس صابر مراد نیازوف وائی چې مونږ په کال کې ۵۰۵ میلیونه ټنه تیل تولیدولای شو.

د ترکمنانو اوسنیو واکمنانو ونه منله چې د روسانو له خوا جوړ شوی مشترک المنافع هیوادونو په تنظیم کې شامل شی ترڅو پدی توګه د روسانو له نفوذ نه ځانونه لری کړای شي.

د روسی روبل پر ځای د (مانات) په نوم روپۍ چاپ او مروجی یې وګرځولی.

اوس ترکمنستان د اسلامي ویښتیا په لور ګړندی قدمونه اخلی د قاضی نصر الله بن عبادالله په مشری د ترکمنستان د مسلمانانو تنظیم په رسمی ډول فعالیت کوی په عشق آباد کې د حضرت عمر بن الخطاب په نوم د منطقی د تر ټولو لوی جومات مخ په جوړیدو دی او ځوانی ښځی د اسلامي حجاب په خپلولو کې یوه له بلی نه وړاندی والی کوی او ځوانان د اسلام پیژندنی ته خورا زیات لیوال دی.

## ۵ : قرغیزستان ۱۳۵

د ماوراء النهر دا اسلامي هیواد ۱۸۹۵۰۰ کیلومتره مساحت لری شمالی پولی يې له قزاقستان ، جنوبۍ يې له چین او تاجکستان ختیځی پولې يې له چین او لویدیځی پولی يې له ازبکستان او قزاقستان سره تړلی دی.

( ۵،۵ ) میلیونه نفوس لری چې اکثریت يې سنی مسلمانان دی.

قرغیز او اوزبک پکې له ( ۷۵ ٪ ) څخه ډیر او روسان او اکران پکې (۲۰٪) دی

په ۱۹۹۱ کال کې يې قرغیزی ژبه خپله رسمی ژبه اعلان کړه نو ځکه زیات راغلی روسان بیرته خپلو ځایونو ته وخوځیدل.

زراعت او مالداری يې ډیره پرمختللی او د کال سل میلیونه ټنه تیل صادروی یورانیوم رخام ، سره زر ، ګوګرد ، زنګ او د ډبرو سکاره هم ښه ډیر لری

اسلام وَرته د لومړۍ قرن په اخرنیو وختونو کې هغه وخت راغی چې قتیبه بن مسلم الباهلی ( ۸۸ - ۹۶ ) هجری کلونو په اوږدو کې د یو فاتح په صفت د خپلو لښکرو سره هلته داخل او تر چین يې د اسلام وړانګی ورسولی.

د فرغانی په رباط سرهنګ نومی ځای کې د عربی قوماندان قتیبه" قبر په خوقند کې د امام عبدالله بن علی بن زین العابدین بن الحسین بن علی چې په ۱۱۳ هجری کال مړ شوی قبر د فرغانی په اسیدنولات سیمه کې د ۲۷۰۰ صحابه وو او تابعینو قبرونه چې د حضرت عثمان رضی الله له لوري د محمد بن جریر په مشرۍ راليږل شوی او هملته شهیدان شوی وو ټول د دی ښبي دي چې قرغیزیان څومره له اسلام سره پخوانۍ کلکی او نه شکیدونکی اړیکې لرې ؟

روسانو په ۱۸۶۶ کال کې پدې هیواد خپلی منګولی ښخی کړی خو قرغیزی مسلمانان په ځانګړې توګه د تصوف طریقو مریدان د تل لپاره له قیصری او بیا وروسته له کمونستي واکمنانو سره لاس او ګریوان وو.

د ۱۹۹۱ کال د اګبنست د میاشتی په ۳۱ نیټه عسکر اقایوف له روسانو د خپلواکۍ اعلان وکړ

اقایوف د خپلې هوښیارتیا په رڼا کې وتوانید چې د اولس د مختلفو پرګنو سیاسي ډلو مذهبي او فکري اړخونو ملاتړ تر لاسه او د خپل هیواد د پرمختګ او د خپلواکۍ د ټینګښت لپاره قدمونه واخلي.
اقایوف ایران ، جاپان ، منګولیا او نورو هیوادونو ته سفرونه وکړل تجارتي تړونونه یې لاس لیک او د نړیوال مالي صندوق په مرسته یې د صام په نوم د خپل هیواد لپاره بانک نوټونه چاپ کړل.
له آزادۍ وروسته ځینو عیسائي تنظیمونو د عیسویت د خپرولو لپاره هلې ځلې پیل کړې خو ډیر ژر ورته مسلمانان متوجه او د ۱۹۹۲ کال د اپریل په میاشت کې مسلمانان په جوماتو کې راټول او له حکومت نه یې غوښتنه وکړه چې د عیسویانو د فعالیت مخه ونیسي او هیله یې وکړه چې د ښوونځیو په تعلیمي نصاب کې دې د اسلام پیژندنې مضمون شامل کړای شي دا غوښتنه د ۱۹۹۳ تعلیمي کال په پیل کې حکومت رسماً ومنله.

### ۶ - آذربائیجان

د قفقاز د غرونو په څنډو کې اسلامي هیواد دی چې ۸۷۰۰۰ کیلو متره مساحت لري ختیځې برخې یې د قزوین په بحیرې ، لویدیځې یې په ارمنیا او جورجیا او د شمال له لورې په داغستان او جنوبي برخې یې ایران سره تړلې دی.
اذري قوم د درې هیوادونو په مینځ کې ویشل شوی دی چې اته میلیونه یې په آذر بائیجان لس میلیونه یا زیات یې په ایران او ۱,۵ میلیون یې په ترکیه کې اوسیږي.
آذربائیجان درې لوی روسي ، فارسي او ترکي تمدنونه او فرهنګونه سره تړلی دی.
له همدې کبله تل د لویو واک غوښتونکو د پاملرنې وړ ګرځیدلی دی.
د آذربائیجان د اته میلیونه خلکو (۸۵ ٪) مسلمانان دي چې آذري یې ۸۰ ٪ روسان ۶ ٪ امنیان ۷٪ او ۷٪ پکې کردي او تتاري مهاجرین میشته شوي دي

باکوئی پلازمینه او مهم صنعتی ښار دی.
زراعت په ټول آذربائیجان کي ښه وده میندلی او د ټول شوروي اتحاد (۵۵ ٪) تیل همدلته تولیدیدل آذربائیجانی قالینی خورا مشهوری سیمنټ، او اوسپنه هم ښه ډیر لری.
سیندونه یې ډیر دی نو ځکه په ګاونډیو هیوادونو بریښنا پلوری.
د حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه د خلافت په اوږدو کې د سراقه" بن عمرو په لاس په ۱۸ هجری کال کې هلته اسلام راغی او خلکو په ورین تندی ومانه.
که څه هم د آذربائیجان په چاپیرو هیوادونو کې د بغاوت او ارتداد ډیری هلی ځلی شوی دی خو آذریان پدی افتخار کوی چې په هغه لښکر کې چې اسلام یې دویته راوړی دی د رسول الله صلی الله علیه وسلم د اولادی نه امام حسن، امام حسین او عبدالله بن عباس رضی الله عنهم هم د فاتحو غازیانو په صفت دلته راغلی وو نو ځکه اسلام د دوی په زړونو کې ځای نیولی او تری مرتد شوی ندی.
اذریان تل په اسلام ټینګ پاتی شوی دی که څه هم قیصری روسانو په ۱۸۶۳ کال کې ونیو او وروسی په ۱۹۱۷ کې کمونستان هم واکمن شول خو تاریخ ښوولی ده چې آذریانو له اسلام سره خپلی اړیکی ندی شکولی.
د تاریخ په زرینو پاڼو کې ثبت شوی ده چې آذریانو له ۱۹۲۰ کال څخه تر ۱۹۸۰ کال پوری ۵۲۰ ځلی له کمونستی نظام څخه بغاوت کړی او د وینو ورکولو په قیمت یې له اسلام سره خپله مینه اعلان کړی ده.
آذربائیجان په ۱۹۹۱ کال کې خپله آزادی یو ځل بیا اعلان کړه خو د آزادی سره جوخت د نګو رو قره باغ له ستونزو سره لاس او ګریوان شو.
نګورو قره باغ څه دی؟
روسانو د کمونستی نظام په سیوری کې د آذریانو د قومي وحدت د ختمولو لپاره ځینی ارمنیان راوستل او د آذربئیجان په مینځ کې یې میشته او داخلی خپلواکی یې ورکړه.

دا منطقه ۴۴۰۰ کیلو متره مساحت او ۱۸۰۰۰ اوسیدونکی لری چې ۷۶ ٪ یې ارمنیان دی.
د ۱۹۸۸ کال د فروری په میاشت کې ارمنیانو خپله آزادی وغوښته او د ۱۹۸۹ کال تر پایه دا غوښتنه هجرتونو او لاس اوچتنی ته ورسیدله او چې په ۱۹۹۱ کال کې اذربائیجان له روسی څخه آزادی اعلان کړه نو د همدی کال د دسمبر په میاشت کې ارمنیانو هم د قرباغ منطقه جلا هیواد اعلان کړ خو پرته د ( ارمنیا ) له جمهوریت څخه بل هیچا په د رسمیت ونه پیژندلو د نګورو قره باغ په هکله د اذربایجان او ارمنیا تر منځ اوږده خونړی جنګونه وشول او دواړو طرفونو ته یې د سر او مال درانه تاوانونه واړول.
اوسنی آذربایجان :
هلته اوس د ترکی سیکولیریزم او ایرانی مذهب شیعه تر مینځ پوره مقابله ده د اذربائیجان د مسلمانانو خلکو ۶۰ ٪ شیعه او نور یې حنفی مذهبی اهل سنت دی خو لدی کبله چې د نګورو قره باغ د جنګونو په اوږدو کې ایرانیانو له ارمنیا سره د خوراکی موادو کومک کړی دی نو څکه آذریان له ایران نه ګیله من دی.
که نه نو آذریان خوښوی چې ایران ته ډیر نژدی او یو وخت کیدای شي چې دواړه آذربائیجان یو هیواد شي
د ایران د اسلامي نظام واکمنان له آذربائیجان سره نژدی اړیکی ډیری خوښوی خو لدی سره یې کومه خاصه مینه نشته چې دواړه آذربائیجان دی سره متحد شی او ځنی خلک لا وائی چې د ایت الله شریعت مداری معتوب کیدل چې یو آذری شیعه عالم وو د همدی مسائلو یوه کړۍ ده.
خو په مقابل کې ترکی سیکولیریزم د امریکا او غربی نړۍ په ملاتړ هلته خورا ګړندی قدمونه اخلی
که څه هم ځنی نوری فکری او مذهبی ډلې هم هلته فعالی دی خو لدی کبله چې د ایران او ترکیې په شان هیوادونه یې ښکاره ملاتړ نه کوی نو څکه د دی دواړو طرفونو سره سیالی نه شی کولای.

## د روسی په فدرال کې اسلامي جمهوریتونه

### ۱- تتارستان

دا اسلامي جمهوریت چې ۶۸۰۰۰ کیلو متره مساحت لری د روسی د اروپائی برخی په مینځنی حصه کې پروت دی پینځه میلیونه نفوس لری او ټول یې تتاری مسلمانان دی تتاریان ۷ میلیونه خلک وو خو د کمونیزم د واکمنی په ځانګړی ډول د ستالین په دوران کې مختلفو لورو ته وشړل شو تر ۱۹۱۷ کال په تتارستان کې ۲۲۲۳ جوماتونه وو خو د کمونستانو د وحشت په نتیجه کې تر ۱۹۸۰ پورې یوازې ۱۷ جوماتونه پاتی شول د کمونیزم د سحری نظام له ړنګیدلو وروسته تتاریانو ته یو ځل بیا موقع په لاس ورغله چې د خپلی اسلامي ماضی په لور ورتاو شی او په (۱۹۸۹) کال کې چې ریفرنډم وشو نو ښکاره شوه چې ۸۰٪ خلک ځانونه مسلمانان بولی او ۶۰٪ خلکو ژمنه وکړه چې خپل اولادونه سنتوی او (۸۰٪ خلکو ومنله چې د اسلام د اصولو په رڼا کې په شرعی نکاح تړی.

د تتارستان خلک آزادی ته خوړا لیوال دی نو ځکه یې اولسی جرګی په ۱۹۹۱ کال او د ۱۹۹۲ کال د فروری په میاشت کې د بشپړی آزادۍ لپاره ۸۰٪ غړو مثبت ځواب ورکړ خو ډیره ګرانه ده چې د روسی په مینځ کې دومره ژر یو اسلامي مستقل هیواد جوړ او د روسی امپراطوری دی په بشپړ ډول له مینځه ولاړه شي.

هلته اوس د اسلام د بیداری تحریکونه ښه په منډه روان دی تر ټولو زیات د اسلامي نهضت تنظیم او د اتفاق تنظیم ډیر فعال دی د اتفاق تنظیم په (۱۹۰۵) م کال کې جوړ شوی او غړ یې دا دی چې باید د روسی ټول اوسیدونکی مسلمانان یو ځانګړی آزاد هیواد شي.

### ۲- بشکیریا

دا جمهوریت چې د تتارستان، سایبریا او قزاقستان په مینځ کې پروت دی څلور میلیونه نفوس لری، بشکریان په خپله خاوره کې اوس

یوازې ۲۲ ٪ پاتی دی دوی اهل سنت مسلمانان او د امام شافعی رحمه" الله علیه وسلم د مذهب پیروان دی
دا له پترولو او قیمتی معدنونو څخه ډک هیواد د آزادۍ لپاره لیوال دی او د اسلامي وښتیا قدمونه ګرندی پکې پورته کیږی شیخ طلعت تاج الدین یو مذهبی مشر او خلکو ته د دینی مسایلو په هکله فتواء ورکوی

## ۳- د قرم جزیره

دا اسلامي هیواد وو خو د ستالین د وحشت له کبله له دوه یمی نړیوالی جګړی وروسته یې زیات اوسیدونکی پدی تور چې له المانیانو سره یې همکاری کړی سایبریا ته تبعید شو او اوس په دري میلیونو خلکو کې یوازې نیم میلیون مسلمانان پاتی دی
دلته اسلام له څلورمی پیړۍ راهیسی خپور شوی دی او داسی وختونه هم تیر شوی چې روسانو به د ( قرم ) اسلامي واکمن ته باج ورکاوو خو په ۱۷۳۸ م - ۱۱۵۱ هجری کال کې پری روسانو یرغل وکړ او د عثمانی خلافت د بی حسی له کبله یې په ۱۷۸۳ کال کې په بشپړ ډول ونیو څکه هغه تړون چې په ۱۷۷۴ کې د روسانو او عثمانی خلافت تر مینځ وشو چې عثمانی خلافت به د قرم په امورو کې مداخله نه کوی روسان زړور او د غوښنده برید لپاره برابر کړل

## ۴- سایبریا

سایبریا تـه چې ۱۲ میلیونه کیلو متره مساحت یعنی د ټولی ځمکی ۷ ٪ ده اسلام پـه ۹۷۸ ه کال کې د چنګیز خان د یوه لمسی کوچم خان پـه واسطه ورسید هلته اسلام خپور او کله چې روسانو پری حمله وکړه نو کوچم خان خپله مشهوره خبره وکړه چې
زه د بند او ذلت مرګ نه خوښوم زه پدی نه یم خفه چې زما پاچائی له مینځه ځی بلکی پدی غمژن یم چې زما اولس د روسانو تر غلامی لاندی راځی او تر هغو یې مقاومت وکړ چې شهید شو

## د قفقاز د څنډو مسلمانان

په منطقه کښاوس لاندی داخلی خپلواکی لرونکی هیوادونه دی.

**۱ } داغستان**

دا یو غرنی هیواد دی چې د ټول هیواد ۷۵ ٪ یې غرونه جوړوی دوه میلیونه نفوس لری ۸۰ ٪ یې مسلمانان د امام شافعی رحمه" الله علیه پیروان ، لږه کي شیعه ګان هم شته او پاتی ۲۰ ٪ یې له نورو ځایونو څخه راغلی روسان یهودیان او نور خلک دی.

مهم ښارونه یې له : محج قلعه دربند او قزوین څخه عبارت دی.

دا هیواد یو زراعتی هیواد دی غنم ، وریځی ، د څارویو ښه ډیر څړ ځایونه او ډیر څاروی لری.

د قزوین له بحیری څخه تیل او ماهیان ډیر زیات راوباسی او په تجارتی شکل تری ګټه اخلی

اسلام ورته په ۲۲ هجری کال کې راغلی تل اسلامي پاتی شوی خو چې په ۱۷۸۳ کال کې روسانو ونیولو نو د داغستان مسلمانانو ملی پاڅونونه وکړل چې تر ټولو مشهور یې د مجاهد عمر خان پاڅون دی چې روسان یې له داغستان څخه وشړل او په ( ۱۸۰۰ ) کال کې د امام شامل په مشرۍ هلته یو اسلامي دولت اعلان شو.

امام شامل له روسانو سره له ۱۸۲۹ کال څخه تر ۱۸۵۹ کال پوری مقابله وکړه تر څو روسانو بندی او بیا د عثمانی خلیفه د منځګړیتوب په نتیجه کې مکی مکرمی ته په ۱۸۷۰ کال کې جبری مهاجر او په ( ۱۸۷۱ ) کال کې په مدینه منوره کې وفات شو.

د امام شامل د پاڅون د ټکولو وروسته روسانو په خورا وحشت سره داغستانیان وټکول نو ځکه یې زیات خلک عربی هیوادونو ته مهاجر شول.

د ۱۹۹۲ کال د انتخاباتو په نتیجه کې د جوړی شوی ملی شورا د مجلس معاون ډاکتر احمد قاضی چې د اسلامي نهضت د غیر رسمی تنظیم مشر دی وائې چې مونږ په خورا سختو شرایطو کې خپل اسلام ژوندی ساتلی

دی تر ۱۹۸۷ کال په ټول داغستان کي (۲۷) جوماتونه وو خو اوس پکښ الحمد لله (۱۰۰۰) جوماتونه جوړ شوی پارلمان پریکه کړی چې باید عربی ژبه په ښوونځیو کي تدریس او د جمعی ورځ رسمی رخصتی وګڼل شی او ان شاء الله هغه ورځ نژدی ده چې داغستان یو ځل بیا اسلامي خپلواک هیواد وګرځی

**ب } چیچنیا**

د چیچنیا مسلمانو خلکو د خپلی آزادۍ د تر لاسه کولو لپاره یو ځل بیا د توحید د کلمی تر شعار لاندی خپل هغه اسلامي پاڅون پیل کړ چې د ۱۷۸۵ میلادی کال په اوږدو کي امام منصور دروس د هغه وخت واکمن (دو یم کاترین) د خونخوارو یرغلګرو فوځونو په مقابل کښشروع کړی وو

دا جنګ اوس هغه وخت پیل شو چې د شوروي اتحاد په نوم د ظلم او زور جوړه شوی جونګړه ړنګه شوه نو د چیچن مسلمانانو هم وخت ومینده چې دوی هم لکه د نورو جمهوریتونو په شان له روسانو څخه ځانونه جلا او خپل اسلامي تاتوبی په خپله جوړ کړی

پخوانی تاریخ

لکه څنګه مو چې وړاندی وویل هغه وخت چې په ۱۷۸۵ کال کي روسی قواوو د (دویم کاترین) د پاچائی په زمانه کي پر چیچنیا یرغل وکړ نو امام منصور د جهاد او مقاومت بیرغ پورته کړ د قفقاز د شمال ټولو وګړو د هغه ملاتړ وکړ داغستانیان شرکسیان او نور مسلمان او لسونه یې تر شاه ودریدل او د روسانو سره یې په مړانه مقابله وکړه دی قهرمان امام څو ځل روسانو ته ملا ماتوونکی ګوزارونه ورکړل او روسان یې له خورا زیاتو ستونزو سره مخ کړل خو بالاخره امام د یوی توطئی په واسطه بندی او په ۱۷۹۴ کال کي شهید کړای شو

د امام منصور تر مرګ وروسته د هغه قهرمانو شاګردانو دا جګړه توده او ګرمه وساتله تر څو چې په ۱۸۱۸ میلادی کال کي روسانو دغو څه یرغلونو

د سرته رسولو لپاره یو وران کاری یرملوف نومی وحشی انسان د چیچنیائی اولس د تس نس کولو لپاره د زیاتو لښکرو په ملگرتیا هلته ولیږه.
یرملوف خورا زیاته هڅه وکړه د قفقاز په شمال کې مقاومت له مینځه یوسی او چیچنیا په بشپړ ډول د رسوی یو ولایت وګرځوی خو بریمن نه شو هغه وو چې روسی امپراطور په قهر او د ده د عزل فرمان یې په ۱۸۲۸ کال کې اعلان کړ او بیا یې د نورو وحشی لښکرو پواسطه یرغلونو ته دوام ورکړ چې په ۱۸۲۹ کال کې روسان وتوانیدل چې د منطقی ټول مقاومتونه وځپی او د قفقاز جنوبی برخی ټولی د هغوی په لاس کې پریوتلی.
خو بیا هم د چیچن مقاومت په بشپړ ډول له مینځه ولاړ نه او په مختلفو ډولونو یې خپل پاځون ژوندی وساته ترڅو د غازی محمد او د هغه د شاګرد شامل داغستانی تر مشرۍ لاندی یو نوی جهادی پاځون شروع شو امام غازی محمد د جهاد فتواء ورکړه او مسلمانو خلکو یې ملاتړ وکړ خو لږ وخت لا نه وو تیر شوی غازی محمد شهید او د هغه شاګرد شامل داغستانی زخمی شو د جهاد بیرغ د ( حمزات ) قهرمانو متو پورته کړ خو هغه هم په ۱۸۳۴ کال کې شهید شو لده وروسته د جهاد رهبری ( شامل داغستانی چې وروسته یې د امام شامل لقب یې وګاټه په غاړه واخیسته او د اوږدی زمانی لپاره یې مقاومت ژوندی وساته دا پاځون د ۱۹۰۵ کال تر پایه د چریکی جنګونو په شکل کله د ماتی خوړلو او کله د سوبی د ترلاسه کولو په رنګونو کې متحرک او فعال وو خو د څه وخت لپاره روسان په کامل ډول په منطقه کې برلاسی او واکمن شو او د ۱۹۱۷ کمونستی انقلاب هم په غولوونکو وعدو ځیلی مسلمانان لاپسی اغفال او ویده کړل چې ګنی اوس به د واکمن کمونستی نظام په سیوری کې د روسانو له وحشت نه خلاص او د آزادۍ ساه به واخلی خو کمونستی نظام له پخوانیو وحشتونو څخه لا وحشی او لږ وخت لانه وو تیر شوی چې د عسکری او نظامی واکمنۍ تر څنګ د فکری او فرهنګی امپراطورۍ پراخولو کار یې هم شروع کړ.

په ټولو مفتوحه اسلامي رياستونو کې يې پراخه هلې ځلې وکړې چې د خلکو له مينځ څخه اسلامي هويت تلا ترغه کړي.
خو د چيچنيا اولس لدې يرغل سره هم خورا په مړانه مقابله وکړه او د کمونيزم په اويا کلنه ديکتاتورۍ کې يې خپله اسلامي ځيره په ښه توګه وساتله
اوسنی پاڅون
کله چې په (۱۹۹۱) کال کې د شوروي اتحاد اوسپنيز سحری ديوالونه ړنګ او هر څوک په خپله لار ولاړ په چيچنيا کې هم اولسی انتخابات وشول او د شوروي اتحاد د هوائی قواوو يوه پخوانی قوماندان جنرال جوهر دودايوف د جمهوری رياست څوکۍ وګټله.
جوهر دودايوف د حالاتو په رڼا کې قدم واخيست او په ګروزنی کې يې د کمونيزم په سيوری کې جوړ شوی نظام ړنګ د روسی فيډريشن چې د پخوانی شوروي اتحاد قائمقام ګڼل کيده د غلامۍ کړۍ له غاړه کولو څخه يې بغاوت اعلان او د خپلواکۍ بيرغ يې پورته کړ.
دی اعلان روسان خورا سخت په قهر کړل چې د همدی قهر او غوصی له مخی يې په ګروزنی خونړۍ حمله وکړه چې د اوږدو جنګونو نه وروسته يې په (۱۹۹۴) کال کې ګروزنی په داسی حال کې په خپل کنترول کبراووست چې څلويښت زره چيچنائی خلکو د شهادت لوړ مقام تر لاسه کړی او د دری لکو کسانو په شاو خوا کې خلکو نورو ځايونو ته هجرت کړی وو خو د حق لاری مجاهدينو خپله مبارزه پری نه ښووله او د جنرال روخار دودايوف په مشرۍ کې يې د غرونو په لور مخه او هلته يې د جهاد لپاره ماتی نه خوړونکی سنګرونه جوړ کړل.
قهرمان دودايف په (۱۹۹۶) کال کې د روسانو د يوه ميزايل په لګيدلو شهيد او د رهبرۍ دروند پيټی د سليم خان اندربايوف په اوږو بار شو سليم (زيلم خان) لکه څنګه چې د جنګ او ګولۍ قهرمان وو د خبرو او د سياسي ډګرونو هم قهرمان وو هغه وو چې له روسانو سره يې

یو تړون لاس لیک کړ چې په رڼا کېږي روسانو د پنځو کلونو یعنی د ۱۹۹۶ کال څخه تر ۲۰۰۱ کلونو پورې د چیچنیا آزادي په رسمیت پیژندلې وه.

مګر له بلې خوا عامو مجاهدینو دا وړ سوله د خپل اوږده جهاد په ګټه نه بلله نو ځکه یې جګړو ته دوام ورکړ او د همدې کال په اوږدو کې یې د یو قهرمانانه اقدام په نتیجه کې ګروزني آزاد او د روسانو ګوډاګي رژیم یې د تل لپاره نسکور کړ زیلم خان د آزادو انتخاباتو اعلان وکړ چې په نتیجه کې یې ارسلان مسخدوف د اسلامي چیچن رئیس جمهور وټاکل شو.

مسخدوف د ۱۹۹۷ کال د مې میاشتې په ۱۱ نیټه د روسې د جمهور رئیس بوریس یلسن سره په لاندې متن تړون لاسلیک کړ:

۱ - د مشکلاتو د حل لپاره به دواړه خواوې د خبرو اترو لار نیسي او زور به په کار نه اچوي.

۲ - خپل مینځي روابط به د نړیوالو قوانینو په رڼا کې جوړوي.

۳ - دا تړون د راتلونکو ستونزو د حل لپاره بنسټیز ارزښت لري.

۴ - دا تړون به دوه نقله لیکلې شي هر نقل یې د باور وړ دی.

۵ - دا تړون له لاس لیک وروسته د تطبیق وړ دی.

بوریسن یلسن د روسې فدراسیون رئیس جمهورد چیچن جمهور رئیس ارسلان مسخدوف د پورتنۍ تړون په رڼا کې تولې روسي قواوې له چیچن څخه ووتلې خو روسې قیادت د یو بل خونړۍ ګوزار لپاره د ښو حالاتو او مناسبو بهانو په انتظا کې وو هغه وو چې د (KGB) په واسطه یې په مسکو کې څو چاودونې وکړې او دې ته یې بهانه جوړه کړه چې یو ځل بیا باید په ګروزني یرغل وکړي تر څو د چیچن خلکو او نورو هغو اسلامي هیوادونو ته یو درس شي چې د روسانو نه د آزادۍ خیال او فکر ورسره دی هغه وو چې ټول قراردادونه او تړونونه یې مات، ټول بین المللي اصول یې تر پښو لاندې او په ګروزني یې وحشیانه برید وکړ.

اوس جمهور رئیس ارسلان مسخدوف او د هغه مجاهد ملګری له ګروزنی ښخه بیرون په غرونو کې ناست او د خپل وطن د آزادۍ لپاره هره ورځ خپلې وینې تویوی زمونږ پوخ باور دی الله پاک رښتیا فرمایلی دی :
که تاسی د الله د دین په لار کې ملا وتړۍ الله به له تاسی سره کومک وکړی
هغه ورځ ډیره نژدی ده چې د امام منصور ، امام شامل او د جوهر دودایوف غوندی قهرمانو شهیدانو وینی د چیچن په خاوره شین پسرلی راولی.

**ج } انګوشتیا**

دا کوچنی هیواد یوازې دری سوه زره نفوس لری - اوسنی واکمن یې د پخوانی شوروي اتحاد جنرال رسلان او شیف دی.

**د } شمالی اوستیا**

**ه } کباریا**

دا هیواد ۷۵۰۰۰۰ نفوس لری ټول یې حنفی مسلمانان دی.
د دی هیواد خلک له اسلام سره ډیره مینه لری خو له شرعی نکاح ، د مړو ښښولو او د میلاد النبی د جلسو له جوړولو پرته له نور اسلام سره ډیر اشنا ندی.

**و } شرکسی کراتشای**

دا کوچنی هیواد نیم میلیون اوسیدونکی لری چې ټول یې حنفی مسلمانان دی.

**ز } ادیجه**

دا کوچنی هیواد هم نیم میلیون اوسیدونکی لری چې یو لک یې مسلمان او نور یې روسان دی.

په ارمینیا او جورجیا کې مسلمانان

د ارمینیا په پنځه میلیونو نفوسو کې ۱۰ ٪ خلک یې مسلمانان دی.
او په جورجیا کې چې د ستالین زیږیدن ځای دی په ۶,۵ میلیونه نفوسو کې ۲۰ ٪ مسلمانان دی.

## مسلمانان په چین کې

مسلمانان په شرقی ترکستان کې اوسیدل چې د اسلام د لومړی فتحی په وخت کې یې رسمی ژبه عربی وه ورپسی فارسی ، بیا ترکی او اوس دوی مکلف او مجبور دی چې چینی ژبه زده کړی شرقی ترکستان د سوری ( شام ) لس چنده یعنی د ( ۱,۵ ) میلیون کیلو مترو څخه زیات مساحت لری د شرقی ترکستان ( ۷۵ ٪ ) خلک مسلمانان دی.

او په ټول چین کې د ( ۷۵ ) میلیونو څخه زیات مسلمانان ژوند کوی چې د چین په مختلفو ښارونو بالخصوص په سرحدی ښارونو او لویو مرکزونو لکه کلنتون ، شانګهای او شانتونج او نور ښارونو کې اوسیږی.

د چین صدر اعظم د یو عربی دولت وزیر ته په ۱۳۸۵ هـ کال کې وویل : په چین کې لس ګونه میلیونه مسلمان سره لدې چې په اسلام نه پوهیږی خو دوی له مونږ نه تاسی ته ډیر نژدی دي.

د دې لپاره چې د چین د مسلمانانو وضع وڅیړو یوازې یو مثال وړاندی کوو.

د هانګ ، کانګ د ښار د تمدبات ، باد مجله د ۱۹۶۶ کال د اکتوبر د میاشتی د ۱۱ نیټی پـه ګڼه کې سـره پوځ تـه داسـی خطاب کوی : ای سرو پوځونو !

مونږ باید خپلو دښمنانو ته اجازه ورنکړو چې خپلی دښمنۍ ته دوام ورکړی.

مونږ باید همدا اوس په همغو پټو دښمنانو ( مسلمانانو ) حملی وکړو چې د دین د پردی لاندې چین په خلاف دسیسی جوړوی.

ای مسلمانانو !

لـه نن څخه اخوا به تاسی ته اجازه درنکړو چې د غوائی غوښی وخوری څکه غوایان د ولس خدمت کوی تاسی باید د خنزیر غوښی وخوری.

لـه نـن څخـه وروسته تاسی حق نلری چې خپل وخت مو په لمانځه ضایع کړئ - تاسی باید په عربی ژبه چې د چینی ژبی مخالفه ده خبری ونه کړئ.

مسـلمانانو واوری ! جوماتونـه مـو وران کـړی ، اسـلامي ټولـنی مـنحلی او

قـرآن وسوزوي - هغـه قوانيـن لغوه کړي چې د مشترک واده په لار کې خنډ دي - لمونځ پريږدي - سنتول پريږدي - د ماوو افکار ولولي.

که تاسي زمونږ په شان نشي تاسي به وشړو او له مينځه به مو يوسو.

تاسي بايد د مړکانو په سوړو کې واوسي چې هغه به له تاسي سره يو ځای له مينځه يوسو

تل دې وي فرهنګي انقـــلاب او تل او ژونـدی دې وي ماوزې تنګ

دا هغـه دي چې مونږ تـه رارسيدلي دي او بـاور لـرو هغـه چې مونږ ته ندي رسيدلي لدې هم لوی دي

نو مونږ بايد د هغو مسلمانانو وروڼو د ژوند په هکله چې د کمونيزم د کفري نظام په دوزخ کې‌ژوند کوی فکر وکړو.

## مسلمانان په نورو کمونستي هيوادونو کې:

نور کمونستي هيوادونه لکه بلغاريا البانيا پدی هيوادونو کې کمونستي نظام مسلط دی چې د مسلمانانو روحونه يې قبض کړي سپکوی يې او هڅه کوی چې پاتی ديني غيرت، پاکی او عزت يې هم لوټ کړي.

## مسلمانان په بلغاريه کې

د ختيځی اروپـا د مســلمانو زده کـړو اتحـادی د سـعودی عربسـتان د باندنيو چارو وزير او د دارالافتاء رياست ته په (۱۹۷۶) کال يو ليک لږلی دی چې مونږ يې دلته رانقلوو تر څو د بلغاريا د مسلمانانوله ژوند څخه خبر شو.

مونږ د بلغاری مسلمانان له ټولو هغو کسانو څخه مننه کوو چې زمونږ مسئله يې نړيوالو ته د راديو او ورځپاڼو په واسطه وړاندی کړی ده د دوی دی کار په مونږ خورا ښه اثر وکړ.

مونږ غواړو چې د خپلی مسئلی په هکله نور حقايق ستاسی په وړاندی کيږدو.

کله چې د بلغاری مشران پدی پوه شو چې د بلغاريا د مسلمانانو په هکله په بيرون دنيا کې خپرونی کيږی نو د صوفيا راديو په عربی ژبی يوه ابلاغيه خپره کړه

او په هغې کې يې واضح کړه چې د بلغاريا مسلمانان د نورو بلغاريائى اوسيدونکو په شان له آزادۍ څخه برخه من دي.

پدې کې شک نشته چې دا ابلاغيه ټوله درواغ ده او له واقعيت سره هيڅ اړيکى نه لري.

مونږ نړيوالو ته وايو چې د بلغارى قانون د ۳۳ مادى د ب بند وائى :

هر بلغاريائى اوسيدونکى حق لري چې د خپلى خوښى دين قبول کړى هر بلغاريائى چې غير بلغاريائى ا نوم ولري او د دى نوم له کبله ورته چا سپک وکتل او يا يې څه تکليف ورکړ حق لري چې محکمى ته ولاړ شى.

خو د دى قانونى حق سره ، سره د بلغاريا حکومت هڅه کوى چې د مسلمانانو په خلاف د نصاراوو او کمونستانو پروګرامونه عملى کړى.

له ټولو مسلمانانو ښوونکو څخه يې وغوښته چې يا به خپل اسلامي نومونه بدلوى او يا به له کار څخه شړل کيږى چې بيا به ورته اجازه نه وى چې د دولت په کوم رسمى اورګان کښکار وکړى. (۱۶۵) معلمانو ونه منله چې خپل اسلامي نومونه بدل کړى نو ځکه له وظيفو څخه په خپل پلرنى ټاټوبى بلغاريه کې وشړل شو.

د ۱۹۷۱ - ۱۹۷۲ تعليمى کال په پيل کې يې له ټولو مسلمانانو زده کوونکو څخه غوښتنه وکړه چې که غواړى خپل درس ته دوام ورکړى نو بايد خپل اسلامي نومونه بدل کړى زياتو زده کوونکى خپل نومونه بدل نه کړه نو له ښوونځيو څخه وشړل شو.

ټولو حکومتى ادارو ته متحد المال مکتوبونه صادر شول چې بايد په خپلو موئسسو کې د کار کوونکو مسلمانانو نومونه بدل کړى، وسله والو پوليسو ته وظيفه ورکړ شوه چې دا کار بايد تر پايه کنترول او نظارت کړى.

ډير مسلمانان يې بنديان او خاصو کيمپونو ته يې چې د همدى هدف لپاره جوړ شوى وو ويوړل په مختلفو عذابونو يې ورېږول ... تري راوتلو نو لاس ، پښه او يا پوښتى به يې ماته وه.

ځینی کلی یې محاصره کورونه یې لوټ ان تر دروازو او کړکیو پوری یې وران ، د کورونو خاوندان یې په زوره وشړل ، ډیر کوچنیان ښځی ، او د پاخه عمر خاوندان د هغو ګولیو په واسطه مړه شوه چې د امنیت ساتونکو موظفینو په واسطه وویشتلی شوی ډیرو مسلمانانو لدی حالاتو سره مقابله وکړه ان چې پیغلی انجونی د مقاومت په نتیجه کې زندانو ته ولیږل شوی.

دولتی خلکو د دی لپاره چې په خپلو شومو عملونو پرده واچوی ډیر مسلمانان یې پدی جرم چې ګواکی مسلمانان یې وژلی دی بندیان او د اعدام په جزاء یې محکوم او مجازات کړل.

د ۱۹۷۲ کال د مۍ د میاشتی په لس ورځ تقریباً پنځه زره مسلمانان د بازرګیک ، بارقویفګراد ، او سمولن ګراد له منطقو څخه د بلغاریا پایتخت صوفیا په لور د مظاهری په ډول وخوځیدل.

مظاهرچیانو په نیمه شپه کې منزل پیل کړ تر څو پولیس تری خبر نشی. د پنځلس کلونو څخه تر ۷۵ کلنۍ عمر خاوندان ورسره له مختلفو خلکو څخه یو ځای او په سخت باران او تیاره کې یې حرکت وکړ څو کیلو متره لار پاتی وه چې ( صوفیا ) ته ورسیږی د اسکار نومی مرکز سره وو چې پولیس او دولتی اداری پری خبری شوی ډیر لوی قوت یې دوی ته راولیږه پولس او اردو یې د ټانګونو او زری پوشونو په ملګرتیا د دوی محاصری ته واستول ټول یې بندیان او د بیلو ښار ته یې ولیږدول چې تر ننه هملته بندیان دی.

د ۱۹۷۲ کال د مۍ د میاشتی په ( ۱۲ ) نیټه پولیسو د ایلانسکو کلی محاصره کړ پولیسو د ښه تفتیش په خاطر سپی هم له ځان سره بیولی وو. مسلمانانو د پولیسو د لټونی سره په خورا زړورتیا مقابله وکړه او د پولیسو یو مشر یې هم ووژه پولیسو د غچ اخیستلو په نوم ۳۱ مسلمانان بندیان او محاکمه کړل چې دری یې په اعدام او نور یې په عمری بند محکوم کړل.

او د همدغه کال د همدی میاشتی په ۱۳ نیټه یې باکرودا محاصره کړه.

په نوموړي ښار کې ۸۰ ٪ اوسیدونکي مسلمانان دي د اردو عسکر په زور د خلکو په کورونو ورننوتل نارینه يې د پولیسو د مرکزونو ته یووړل او هلته يې ترې د برچې په سیورې کې غوښتنه وکړه چې باید اسلامي نومونه مو تبدیل کړئ که نه نو وبه ربړول شي او له کار څخه به جبراً ګوښه شي .

په همدغه ډاروونکي منظره کې شهید امین محمد فترنکوف وتوانید چې د پولیسو له مینځ څخه وتښتیږي ، خو فوځیانو پرې ډزې وکړې او ۳۲ کلن ځوان امین محمد يې شهید او د هغه دوه کوچنیان يې یتیمان کړل .

په هغو زړو او عمر خوړلو تقاعد شوو مامورینو يې چې خپل اسلامي نومونه يې نه بدلول ټول حقوق او خوراکي مواد بند او د علاج او دواء کولو حق څخه يې بې برخې کړل .

د مدان د ښار په شفاخانه کې یوې مسلمانې ښځې زوې وزیږاوه د شفاخانې مامورینو ورته وویل چې باید په غیر اسلامي نوم يې ونوموې هغې مننه ونکړه .

حکومتي خلکو ورته وویل چې دا د حکومت پریکړه ده او باید عملي يې کړي مسلمانې ښځې د دوی غوښتنه ونه منله او له ډیر قهر څخه يې خپل کوچنی زوی د مامورینو په مخ وویشت او ترې ولاړه .

په ډیرو ځایونو کې يې جوماتونه وران ، پخوانی ځوانان لمانځه ته نه پرېښوول اوس بوډاګان خلک هم لمانځه ته نه پریږدي د جومات د امام د مرګ انتظار کوي چې د هر جومات امام مړ شي جومات پدې دلیل چې امام يې مړ شوی دی تړي او همدا ډول خورا نوري زیاتي پیښې دي چې مسلمانان پرې ربړوي او سپکوي .

د زده کوونکو اتحادیه خپله ابلاغیه په لاندې ټکو پای ته رسوي :

مونږ د ټولو مسلمانانو ورونو او عربو څخه غوښتنه کوو چې مونږ ته باید د کومک لاس راوږد کړي ، د دوی تش احتجاج مونږ ته ګټه نه رسوي ځکه دا کارونه په مونږ د ټولو نړیوالو په وړاندې کیږي .

مونږ د دغو بدو پیښو د مخنیوی غوښتونکی یو ، مونږ بی گناه یو مونږ له هغو عربی دولتونو څخه چې د بلغاریه سره اقتصادي اړیکی لری غوښتنه کوو چې باید په موضوع کې مداخله وکړی.

او هم مونږ د اسلامي هیوادونو د خارجه وزیرانو له کنفرانس څخه هیله من یو چې په موضوع کې مداخله وکړی او زمونږ موضوع ملگرو ملتونو او د انسانی حقوقو نړیوالی ټولنی ته وړاندی کړی ځکه مونږ له دغو ادارو سره تماس نشو ټینگه ولی

له الله نه د لوی بری غوښتونکی یو.

مونږ د سباء په امید یو او ان شاء الله سباء ډیر نژدی دی.

د بلغاری د مسلمانانو لاس لیکونه

## مسلمانان په البانیا کې

البانیا دوه میلیونه نفوس لری چې ۸۰ ٪ څخه تر ۹۰٪ خلکو یې مسلمانان او نور مسیحیان دی.

مونږ دلته د البانیا پخوانی تاریخ ته لنډه اشاره کوو او لیکو چې:

د ( ۱۹۲۰ ) کال په چاپیریال کې( احمد زقو ) د البانیا پاچا وو البانیا ئی اولس مسلمانانو او مسیحیانو یې خپل دینی مراسم په پوره آزادۍ سره سرته رسول خو له بده مرغه د البانیا په لور د شر دروازی هغه وخت راخلاصی شوی چې د فکتور امناولی په زمانه کې ایټالیانو البانیه ونیوه او دوچه موسیلینی د ایټالیی له خوا د البانیا واکمن وټاکل شو پاچا احمد زوقو یې لاس تړلی ایټالیا ته یووړ.

بیا دویمه نړیواله جگړه پیل او البانیا هم د خپلو نورو گاونډیو هیوادونو لکه یوگوسلاویا په شان د المانیانو په واک کې ورغله د جنگ په نتیجه کې البانیا او یوگوسلاویا د ( تیتو ) د مشرۍ لاندی سره متحدی شوی.

د آزادۍ د پار تیزانی جنگونو مشران انور خوجه او محمد شیخو وو چې وروسته د البانیائی مشران او واکمن شول د البانی او یوگوسلاوئی اتحاد له ۱۹۴۴ څخه تر ۱۹۴۸ کال پوری دوام وکړ.

د تیتو معتدل کمونیزم د البانی د مشرانو خوښ نه او له یو والی جلا او په البانیا کښې د مارکس توند او تیز کمونیزم حاکم کړ.

اوس په ۲۰۰۰ م کال کې په کمونستي نړۍ کې یو اساسي انقلاب راغلی دا دواړه منحوسی خیری یوه هم د ځمکی په مخ نشته دا لا څه چې البانیانو د دوی هغه مجسمي هم ماتی کړی چې د البانیا په مرکز کې په لویو واټونو کې جوړی شوی وی همدا اوس د البانیا مسلمانان د راتلونکی سرنوشت لپاره په هلو ځلو کې دی امید لرو چې ډیر ژر به البانیا یو ځل بیا اسلامي ټاټوبی او د مسلمانانو وطن وی.

## د بوسنیا او هرسک مسلمانان

یوګوسلاویا له شپږ جمهوریتونو څخه جوړه وه.

صربیا - کرواتیا - سلووینا - مقدونیا - جبل الاسود - بوسنه او هرسک.

واکمن خلک پکې صربیان وو سره لدی چې د هغوی نفوس له اته میلیونو څخه ډیر ندی خو د هر څه واک د دوی په لاس کې دی وسله وال فوځ لدوی نه جوړ دی درنه وسله د دوی په لاس کې ده او د هیواد د ټولو سرو او سپینو واکمنان همدوی دی.

له همدی کبله کرواتیانو او سلوانیانو چې کاتولیکی عیسویان وو او ټوله اروپائی تر شاه ولاړه وه خپله خپلواکی تر لاسه کړه د دوی له خپلواکۍ وروسته د بوسنه او هرسک مسلمانانو هم د آزادۍ لپاره ریفرنډم وکړ چې په نتیجه کې ټول مسلمان اولس د آزادۍ د ترلاسه کولو لپاره د هو! غږ وکړ.

د بوسنیا او هرسک مسلمانان د ژرندی د دوه پلونو په مینځ کې راګیر دی صربیان یې د هیواد په ښی اړخ کې او کرواتیان یې په شمال او کیڼ اړخ کې اوږده پراته دی او له ټولو ستره ستونزه یې دا ده چې د دښمنانو د جبری هجرتونو له کبله نن د بوسنیا او هرسک ۳۰ ٪ اوسیدونکی صربیان او ( ۱۴ ٪ ) یې کرواتیان دی.

د یوګوسلاویا د سرشماری له مخی د بوسنیا او هرسک جمهوریت ټول اوسیدونکی پنځه میلیونه خلک دی چې ( ۵۵ ٪ ) یې مسلمانان ( ۳۰ ٪ ) یې ارتودوکس صربیان ۱۴٪ کاتولیک کرواتیان او پاتی یې نور اقلیتونه دی.

د اروپا دغی برخی ته اسلام د عثمانی خلافت د عسکری قواوو د ورتګ نه دوه پیړۍ وړاندی د ځینو مخلصو او پاکو دعوتګرو په واسطه ورغی خو هغه وخت پکې په بشپړ ډول خپور شو چې په ۱۴۶۳م کال کې عثمانی خلیفه سلطان محمد د یو فاتح او قهرمان په توګه هلته ورغی.

خو هغه وخت چې عثمانی خلافت کمزروی او د ژوند آخرنۍ سلګۍ یې وهلی د ( ۱۹۱۲ - ۱۹۱۴ ) کلونو په اوږدو کې بغاوتونه پورته او د لوی صربستان جوړولو چیغه هسکه شوه.

د یوګوسلاویا د جمهوریت له جوړیدلو وروسته صربی واکمنانو د مسلمانانو په وژنه او له کلیو او کورونو څخه په زوره شړل هومره په وحشت شروع کړل چې لږ وخت کېیې د مسلمانانو (۲۷۰) کلی بالکل له مینځه یووړل او په زرګونو مسلمانان یې شهیدان کړل.

د تیتو د ملی پاځون په دوران کې مسلمانانو د هغه ملاتړ وکړ خو کله یې چې په واک منګولی ښخی شوی په خپلو وعدو یې سترګی پټی کړی آن تردی چې د مسلمانانو د اوږده مقاومت وروسته یې په ( ۱۹۷۰ ) کې د داخلی آزادۍ او خپلواکۍ اجازه ورکړه.

همدا اوس هلته د مسلمانانو د وینو رودونه روان دی.

یو انګریز خبریال د خپلو سترګو لیدلی حال لیکی : مسلمانان نشی کولای چې خپل مړی تر خاورو لاندی کړی ځکه مړی ډیر او ژوندی لږ ښکاره کیږی صربیان یو شعار پورته کوی چې : مسلمان باید ووژل شي.

د انګلستان پخوانۍ صدر اعظمه مارګریت تیچر وائی : هغه څه چې صربیانو په بوسنه او هرسک کې وکړل د هیچا امید نه وو

هتلر او ستالین یو ځل بیا راژوندی شوی دی.

د فرانسی (لبراسیون نومی اخبار لیکلی: صربیانو څه د پاسه شل زره کوچنۍ انجونی او ښځی وتښتولی او بی عفته یې کړی.

## د مقدونیا ، کوسووا او سنجق مسلمانان

د دی برخی مسلمانان هم له ستونزو سره مخ دی بلغاریانو مقدونیا ته له خورا اوږدو ستونزو وروسته د داخلی خپلواکۍ اجازه ورکړه خو واک یې ورنکړ چې په نړیواله سطحه خپلواکی اعلان کړی.

او کوسووا هغه وخت صربیانو ونیوله چې د یو ګوسلاویا جمهوریت په ۱۹۷۹ کال کې مخ په ړنګیدو شو خو د کوسووا خلکو د آزادۍ روحیه له لاسه ورنکړه او په ۱۹۹۲ کال ۵ میاشتی په ۲۳ نیټه کې یې د آزادۍ لپاره عام ریفرنډم وکړ د ریفرنډم په نتیجه کې د کوسووا مشر ابراهیم روګووا اعلان وکړ چې زه اوس د خپلواکی کوسووا جمهور رئیس یم ، صربی رئیس دا غوښتنه او ریفرنډم ونه مانه او ویې ویل : کوسووا د یوګوسلاویا نه جلا کیدونکی برخه ده.

په همدی توګه د سنجق نیم میلیون خلکو چې مطلق اکثریت یې مسلمانان دی د خپلواکۍ غږ پورته کړ خو صربیانو له یو لکو څخه زیات وحشی عسکر هلته ولیږل او د مسلمانانو هر څه یې چور کړل.

د سنجق مسلمان مشر ډاکټر سلیمان او ګلانین ، ملګرو ملتونو د اروپا ګډ بازار او نورو د انسانی حقوقو تنظیمونو ته چیغی وکړی خو تر اوسه داسی قدم له هیڅ لوری ندی پورته شوی چې د مسلمانانو بده ورځ پکې لږ راتم شی.

په پای کښباید ووایو :

د اسلام دښمنان څه فکر کوی چې پدی وحشت سره به په اروپا کې د اسلام خپریدلو مخه ونیسی ؟

نه هیڅکله نه ، ان نشاء الله هغه ورځ به ډیره ژر راشي چې اسلام د ګردی نړۍ برلاسی قوت وی

## دریيم فصل ( څپرکی )

# مجاهد و وطنونه

## اریتریا

اوس د هغې اسلامي خاورې په هکله خبرې کوو چې د افریقا په توره وچه کې پرته او د دښمنانو د هغه لوی یرغل سره مخ ده چې د عقیدې او فکر له مینځه وړلو څخه یې دښمنۍ پیل او د اولس او اسلام بالکل ختمول یې آخرنی اهداف دی.

د دې خبرې د روښانتیا لپاره وایم

عیسائیانو هغه وچ کالې چې د افریقا په غربي برخو کې د پنځو مسلسلو کلونو د باران د نه وربښت له کبله او په شرقي برخو یې د مولخانو د حملې او د شګو د راټولیدلو چې ټولې زراعتي ځمکې یې له کار وایستلې غنیمت وګڼله کومکونه او مرستې یې د عیسائیت د دین په لوړ د بلنې سره جوخت په پراخه پیمانه ورورانډې کړې او خلکو ته یې وویل چې دا کومکونه ځکه مونږ کوو چې د عیسائیت دین د مظلوم د لاس نیوې د وږې د مړولو او د ناتوانو سره د کومک دین دی.

پدې هکله یې هومره پراخ کار وکړ چې روغتونونه او ښوونځي یې هم د علاج او تدریس تر څنګ د عیسائیت د خپرولو لپاره په کار واچول خو په همدې وخت کې اسلامي حکومتونو لاسونه ونیوه اسلامي خیریه ټولنې هم د سیاسي کشمکشونو په نتیجه کې له نشت سره مخ او ځینو اسلامي حکومتونو او مؤسسو وړو ته قرآن کریمونه او مجلې ورانډې کړې [1]

---

۱ - د دې خبرې مطلب دا نه دی چې قرآن کریم مونږ ته قدرمن ندی [ نعوذ بالله من ذلک ] مونږ دا خبره ځکه لیکو چې د قرآن کریم هغه قدر باید وشي چې الله پاک له مونږ څخه غوښتې دی رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ ته فرمائي : که د شپې ډوډۍ او ماخستن لمونځ دواړه یو ځای تیار وو نو د شپې ډوډۍ لومړۍ وروسته لمونځ وکړه " نو دا هیڅکله معقول نده

د دی کارونو په څنګ کې صیهوئی استعمار چیانو د افریقا د لاس ته راوړلو لپاره لاندی دری کارونو ته زیاته پاملرنه وکړه.

۱ - هڅه یې وکړه چې زیات افریقائی مشران یو په بل پسی دعوت کړی

۲ - په مختلفو پروژو کې یې خپله مرسته وړاندی کړه.

۳ - هڅه یې وکړه چې زیات افریقایان خپلو هیوادونو ته وبلی.

د دی معلوماتو په رڼا کې وایم

د عیسائی واکمنو په لاس د چاد د مسلمانانو عام وژل، لدی پخوا په تنزانیا کې د مسلمانانو بی رحمانه حلالول، په حبشه کې د مسلمانانو د وینود سیلابونو جوړول او بالاخره په هغه اریتریا چې زیاته برخه اوسیدونکی یې مسلمانان دی د وحشت او بربریت یرغل د دی خبری ښکارندوی دی چې د اسلام دښمنانو په افریقا کې د مسلمانانو د بالکل له مینځه وړلو لپاره ملا تړلی چې تر اوسه په پرله پسی ډول دوام لری.

دوی ځکه دا کار کوی چې ګنی مسلمانان هغه څه نه اوری چې په افریقا کې تیریږی، که وائی وری نو څه ویلی نشی ځکه دا د وروسته پاتی تورانو وطن دی

دا چې یوازې د اریتریا په هکله څه ولیکم او نوره افریقا پریږدم

دلیل یې دا دی چې:

۱ : دلته د مسلمانانو د له مینځه وړلو او په بشپړ ډول ختمولو پوره صحنې په هر اړخیز ډول تمثیلیږی.

۲ : دلته له ټولو ستونزو سره، سره جهاد دوام لری، له هغه دولت سره جهاد کوی چې:

متعصب عیسویان دی، ډیر زیات نفوس لری، د نړیوال صلیبیت، یهودیت او کمونیزم ملاتړ ورسره دی.

---

چې مونږ وړو خیتو ته ووایو چې لوږه مو د قرآن کریم په لوستلو او تلاوت سره مړه کړی.

۳ : دلته نړیوال لاسونه لاس وهی چې د دی ملت جهاد وران او د اریتریا د ځوانانو وژونکی ګوزارونه د حبشی له ښکیلاک ګرو عیسائی لښکرو څخه بند کړی

۴ : او بالآخره د مهم استراتیژی موقعیت په اساس چې د مدیترانی له بحیری سره زر کیلو متره سرحد لری او له عربی و چې څخه یوازې پنځلس کیلو متره لری ده او خاوره یې له معدنونو څخه ډکه ده د مسلمانانو لپاره حیاتي اهمیت لري او د اسلام سپیڅلی دین دښمنانو لپاره لوي خطر دي نو راځی چې ارتیریا بنسټ څخه وپیژنو .[1]

**اریتریا ته د اسلام راتګ** :

اسلام ورتـه د اسلام د لومړنیو وړانګو سره یو ځای ورداخل شو هغه وخت چې مسلمانانو د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د نصیحت په رڼا کې چې فرمائی ( هلته داسی عادل پاچا دی چې په هیچا څوک ظلم نشی کولی ) د دین د ساتنی په منظور هجرت وکړ

د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د هغو مبارکو اصحابو چې په مسلسل ډول یې هلته هجرت وکړ اسلام خپور شو او هم د هغو تاجرانو په واسطه چې له جزیره العرب څخه به د مدیترانی بحیری غاړو ته تلل د اسلام خپریدلو کار ګړندی شو اریتریائی اولس سره لدی چې له خطرناکو یرغلونو سره مخ شویدی تر اوسه خورا ټینګ مسلمانان دی.

---

۱ - د مالونو پالنه پکې ډیره او اکثریت اریتریان په زراعت بوخت دی د مدیترانی له مهم بحر سره اوږده پوله لری چې په هر ځای کې یې بندرونه جوړیدای شي

سره زر، اوسپنه او میګنیزم ، هم په پراخه پیمانه لري د ایتالیائی ځمکی څیړونکو د تحقیق په رڼا کښې د دهلک او مصوع په منطقو کښې د تیلو خزانی هم شته

**اریتریا د یرغل په مقابل کې**

اریتریا د عثمانی واکمنانو په واک کې وه چې د ۳ / ۵ / ۱۸۶۵ م کال د هغه تړون له مخې چې د مصر د خدیو او د عثمانی واکوالو تر مینځ وشو اریتریا په ( ۱۸۶۶ ) کال کې د مصر د واکمنانو په لاس کې ورغله لدې نیتې څخه اروپایان د اریتریا د نیولو په تکل کې شو چې د نیولو لپاره یې پښې لوخې کړې.

د اریتریا د نیولو او د مستعمره ګرځولو لومړنۍ کیسه خورا خندوونکې ده د ایټالیا عیسائی مبلغ ډاکټر جزیبی سابیتو په ۸۶۹ م کال کې د عصب له والی سلطان ابراهیم بن احمد څخه یوه ټوټه ځمکه د «روباتینو » نومی کشتنۍ چلولو شرکت په نوم پدی بهانه واخیسته چې دلته به زما کشتۍ دمه کوی او کله چې هند ته ځی نو سکاره به له ځان سره اخلی.

ځمکه یې واخیسته خو د دیرش کلونو په موده کې یعنی د ۱۸۶۹ - ۱۹۰۳ کلونو په مینځ کې یې ټوله اریتریا خپله مستعمره وګرځوله ، او اعلان یې وکړ چې ( مونږ د اریتریا بیرغ او واکمنانو ته احترام لرو مونږ یوازې د امن او ارامتیا راوستلو لپاره اریتریا تر لاسه کړه .

د اریتریا په نیولو کې د ایټالیا او انګریزی خونړۍ استعمار یو لاس کیدل د ایټالیا د خارجه چارو د وزیر ( ماچینی ) له هغه لیک د دفاع وزیر ریکونی په نوم یې لیکلی وه په ښه ډول څرګندیږی.

زمونږ د عسکری قواوو ستر قوماندان کولای شي چې د مصرع ښار د والی له همکارۍ څخه ګټه واخلی په مصوع کې د مصر اوسیدونکی ښاغلی نثیر مساید والی دی ، نوموړی د انګریزانو په اردو کې د جګړن په رتبه کار کوی ، لومړی خو به څه اعتراض وکړی خو لدی کبله چې د انګریزی واکمنانو له خوا ورته هدایات شوی دی تاسی ته به هلته ښه راغلاست ووائی او د ضرورت وړ مرسته به درسره وکړی.'

او پدی ډول د ایټالیا او انګریزانو د تړون او د حبشی د ملاتړ له کبله اریتریا آزادی له لاسه ورکړه او د ایټالیا مستعمره شوه.

ایټالیانو د اریتریائی اولس په ضد خورا وحشی او خونړۍ کارونه وکړه خلک یې په دار کړه په ډله ایز ډول یې ووژل او په ( د هلک ) کې یې لوی زندان جوړ کړ ترڅو هر اریتریائی چې د آزادۍ او خپلواکۍ غوښتونکی وی پکې ورواچوی .
په ۱۹۴۱ کال کې وروسته لدی چې د متحدینو له خوا په ختیځه افریقا کې ایټالیائی قواوو ته ماتی ورکړی شوه نو د اریتریا واکمنی هم انګریزانو تر لاسه او بیا حبشی ته وسپارل شوه .

**په اریتریا د حبشی یرغل**

پیل یې له هغی ورځی څخه وشو چې په (۱۹۳۸) کال کې د مسلمانانو او عیسایانو په مساوی تعداد سره د ( جمعیه" حب الوطنی ) تنظیم جوړ او د انګریزی استعمار په سیوری کښې د وطن د آزادۍ لپاره ګرندۍ هلی ځلی وکړی خو د وخت په تیریدلو سره حبشی د نوموړی حزب واګی په لاس کښونیوی تنظیم له خپلو ټاکلو اهدافو څخه منحرف او په ۱۹۴۳ م کال کې تنظیم ( حبشه یا مرګ ) غږ پورته کړ .
په ۱۹۴۱/۵/۵ کال کې د اریتریا او حبشی د یو والی په نوم د تنظیم جوړولو لپاره هلی ځلی پیل او د ۱۹۴۶ کال د اپریل په میاشت کې د رسمی حزب په حیث اعلان چې جمعۀ حب الوطن منحرف شوی حزب هم ورسره یو ځای شو په همدغه کال کې مسلمانانو او عیسویانو جلا ، جلا تنظیمونه د ( اسلامي تړون ) او د آزادۍ او پرمختګ په نومونو جوړ او څه وخت وروسته یې دواړه تنظیمونه د ( اریتریا د اریتریانو لپاره ) په نوم سره یو کړل .
وروسته ورسره نور تنظیمونه هم یو ځای او د ( آزادۍ ځلی ) په نوم یې نوی ائتلافی ډله جوړه کړه چې ټولو تنظیمونو په ګډه سره د اریتریا د پوره او بشپړی خپلواکۍ غوښتنه وکړه لدی وروسته ایټالیا پلوی تنظیمونه د ( اریتریا د زړو جنګیالیو تړون ) او د ( اریتریا او ایټالیا تړون ) په نومونو جوړ شوه .

څه وخت وروسته د ( اسلامي تړون ) ډلی په مینځ کې اختلافات پدی خبره اوج ته ورسیدل چې ځینو ویل انګریزان باید ژر ولاړ شی او ځینو ویل چې لس کاله وروسته.

په ۲ / ۱۲ / ۱۹۵۰ کال کې ولسی جرګی د حبشي او اریتریا تر مینځ د یو فدرالی نظام د ټینګښت په هکله لاندی پریکړی وکړی :

۱- د اریتریا حکومت به واک لری چې په کورنیو چارو کې قضائی ، قانونی او اجرائی قواوی ولری.

۲ - اریتریا به د حبشي د پاچائی په سیوری کښداخلی خپلواکی لری.

۳ - فیدرالی حکومت به یوازې د دفاعی ، مالی ، بهرنو تجارت ، مواصلات او د دواړو مملکتونو تر مینځ تجارت او خارجی روابط په خپل کنترول کې نیسی

د ۱۹۵۲ کال د مارچ په میاشت کې د عامو انتخاباتو په نتیجه کې ۶۸ غړو شورا جوړه چې د ۱۹۵۲ کال د اګست په میاشت کې یې نوی حکومت مینځ ته راووړ او په ۱۹۵۲ کال د ۹ میاشتی په ۱۵ نیټه د انګریزانو بیرغ ښکته او د حبشي بیرغ رپانده شو.

د حبشي واکوالو د شوری غړی تر دائمی تهدید لاندی ونیوه او د اریتریا د صدراعظم او د نوی شورا د رئیس د ګډو هلو ځلو او مشورو په نتیجه کې له حبشي سره د اریتریا د بیا یو ځای کولو کار پیل شو.

نوی انتخابات وشوه او په درواغو او ټګیو جوړی شوی شورا په ۱۹۶۲ کال د ۱۱ میاشتي په ۱۴ نیټه له حبشي سره د اریتریا د ادغام اعلان وکړ.

**د حبشي په خلاف د جهاد اعلان :**

په ۱۹۵۸ کال کې د اریتریائی اولس د تنظیم او بیدارولو په خاطر د اریتریا آزادۍ غوښتونکی ډله جوړه او په ۱۹۶۰ کال کې اریتریا د پخوانیو عسکری صاحب منصبانو ، سیاست پوهانو ، منورینو او زده کوونکو په ګډه همکارۍ د آزادۍ د لاس ته راوړلو د هلو ځلو لپاره متحد جبهه جوړه شوه.

د (۱۹۶۱) کال د ستمبر په لومړیو ورځو کې متحدی جبهی د جهاد اعلان وکړ خو یوازې یو میل ۳۰۳ بور انګریزی ټوپک او پنځه زاړه ایټالیائی او څه توری یې درلودی خو ډیر ژر د اریتریا زیات ځوانان لدوی سره ملګری ، نوی او پر مخ تللی وسله یې ترلاسه او د اریتریا زیاته برخه خاوره یې له حبشیانو څخه خپلواکه کړه.

د جبهی مهم اهداف لاندی وو.

۱ - د اریتریا بشپړه آزادی

۲ - د روغ اقتصادي نظام پلی کول

۳ - د داسی تعلیمی نظام جوړول چې د اریتریا له تاریخ سره سمون لری.

۴ - یهودیانو د مزدورو لاسونو لنډول.

۵ - په داخل او نړیواله سطحه د آزادۍ لپاره فعال قدمونه.

د دی پیړۍ د اومی لسیزی په پیل کې اختلافات او انشعابونه یو د بل پسی پیل شو ۱۹۶۵ کال کې لومړنی خیانت هغه وخت ښکاره شو چې د حماس ولایت د پنځمی ولسوالۍ قوماندان ولدار نومی عیسائی اعلان وکړ چې زه د هیلا سلاسی له قواوو سره یو ځای کیږم غوښتل یې چې ټوله وسله او ورسره خلک د هیلا سلاسی قواوو ته وسپاری خو مسلمان مرستیال یې ټول شوم پروګرام ورشنډ کړ.

**د اریتریا جهاد د نابودۍ په درشل**

له ۱۸ کلونو وسله وال جهاد وروسته له څو کلونو راپه دیخوا اریتریائی اولس له زیاتو داخلی اختلافاتو سره مخ دی یوه متحده جبهه په دریو جلا، جلا لاړو وویشل شوه چې اختلاف یې هومـره لوړ اوج تـه ورسید چې یو د بل په ضد له هیڅ ډول ربړ ورکولو ، بندی کولو او تخریبی کارونو څخه سر نه غړوی.

د حبشی حکومت صحنه له لری څخه څارله او سیل یې کاوو انقلابیان څنګه خپل ځانونه خپله له مینځه وړی ؟ خپل کورونه په خپلو لاسونو نړوی ؟

د حبشي قواوي له دفاعي سنګرونو څخه راپورته او په اریتریائي مجاهدینو یې یرغلونه پیل او ټولې هغه ځمکې چې د دوی په لاس کې وې بیرته یې تري ونیوې.

او لدې کبله چې په ادیس آبا کې کمونستي حکومت دی نوی استعماري ځواکونه لکه کوبیا او روسي هم د حبشي له قواو سره پوره ملاتړ وکړ.

دلته دی چې سیاسي لوبې پیل او هڅه وشوه چې انقلاب بیرته همغه ځای ته ورسوي چې ۱۷ کاله پخوا له کوم ځای څخه پیل شوی وو.

نړیوالو ځواکونو په ځانګړې ډول روسانو وړاندیز وکړ چې د اریتریا مشکل باید د سیاسي خبرو لارې پای ته ورسیږي ، ځینو عربي هیوادونو چې د روسانو خبری منل ورته د دوی د خپلو ستونزو له کبله ګټه من ښکاریده هم د سیاسي حل ملاتړ وکړ او د اریتریا په مجاهدو ډلو یې ټینګار وکړ چې باید سیاسي حل ومنې.

د سیاسي حل غټ ټکی دا دی چې د ( حبشي ، اریتریا ، جنوبي یمن او صومال ) په مینځ کې دی یو کنفدرراسیون جوړ شي تر څو پدې توګه سری قواوې وکړای شي چې له مدیترانی څخه یو امنیتي کمربند تاو کړي.

د لوی خدای په مرسته د اریتریا د حالاتو د څیړنې په نتیجه کې د دی انقلاب په هکله خپل تحلیل په لاندې ډول وړاندې کوم.

۱ - دا انقلاب په غلطو بنسټونو پیل شو او د هغو نورو انقلابونو په شان ناکام شو چې په اسلامي خاورو کې پیل او ناکام شوي دي.

ځکه دوی ګومان کاوو چې د وطن په نوم پیل به ګټه من وی نو د خیانت پیل له همدې شروع څخه وشو ځکه چې د وطن پرستو ډله د اریتریا له وطن پرستي څخه د حبشي وطن پرستي ته و اووښته او غږ یې پورته کړ چې حبشه یا مرګ.

او سهوی دوام پیدا کړ چې اسلامي تړون نومي تنظیم له عیسائي تنظیم سره یو ځای او یوه متحده جبهه یې جوړه او بیا وروسته په دوه برخو

وویشل شوه او دواړو د دی ملاتړ کاوو چې اریتریا دی د انګریزانو په واک کې ورشی.

۲ : انقلاب په غلط ډول پیل او په خطرناک ترینو غلطیو سره پای ته ورسید ځکه یوه ډله په دریو داسی ډلو وویشل شوه چې یو له بل سره ورانه او یو له بل سره جنګ او جګړه یې د حبشی له قواوو سره له جنګ او جګړی څخه بیخی زیاته سخته وه.

الله جل جلاله د خپل کومک او مرستی شرطونه په لاندې ډول بیان کړي دي.

يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا لَقِيتُمْ فِئَةً فَاثْبُتُوا وَاذْكُرُوا اللَّهَ كَثِيرًا لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ()وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَا تَنَازَعُوا فَتَفْشَلُوا وَتَذْهَبَ رِيحُكُمْ وَاصْبِرُوا إِنَّ اللَّهَ مَعَ الصَّابِرِينَ[ د سوره انفال ۴۴ - ۴۵ آیتونه ]

( ای مؤمنانو ! کله چې له یوی (دښمنی ) ډلی سره مخ شوۍ نو مقاومت وکړۍ خدای ډیر یاد کړۍ تر څو خلاصی تر لاسه کړۍ د خدای او د هغه د رسول مننه وکړئ ، یو له بل سره جګړی مه کوۍ ( که جګړه مو وکړه ) ناکام به شۍ او ستاسی باد به واوزی صبر وکړۍ بیشکه الله پاک له صبر کوونکو سره دی )

لوی الله جل جلاله ( اختلاف نه کول ) د هغو پنځو عواملو څخه چې خدای پر کومک کوی یو عامل ګڼلی دی او له اختلاف سره یې توان ورکیدل ، باد وتل او د واکمنی او قوت له مینځه تلل تړلی دی

۳ - د اریتریا انقلاب لدغه پریوتی حال څخه نشی وتلی تر څو چې خپله لار سمه نه ، خپله اسلامي څیره څرګنده نه او رښتینی اسلام عملی نکړی.

د خپلو مادی قوتونو سره د اسلام او عقیدی هغه توانائی یو ځای نکړی چې د خدای دښمنان پری داریږی.

که دا لار یې خپله نکړه او انقلاب بریمن شو که څه هم امکان یې ډیر لږ دی ، نو په اریتریا کې به هغه څه مینځ ته راشی چې په نورو اسلامي خاورو کې د اسلام نه منحرفو انقلابونو په نتیجه کې پیښ شوی دی.

او د اریتریا اوسیدونکی به هغه څه وکړی چې اوس یې د حبشي واکمن کوی او پدی ډول به د حبشي د واکمنانو هدفونه بی له تاوان او تکلیف څخه تر سره شي.

## فلپین [۱]

دا یوه بله ستونزه او مصیبت دی.

پنځو میلیونو مسلمانانو هر څه درلوده ، د خپلی خاوری له زیاتی برخی څخه چې د آسیا په جنوب ختیځ بحرونو کې د ټولو ټروتونو سره پرته ده د جنوب له لور وشړل شو.

---

۱ - عربو مسلمانانو ورته ( مالیزیائی پیغله ) نوم کیښود او عیسائی هسپانویانو پری د ( فلیب جزیری ) نوم کیښود ، چې نسبت یې دویم فلیب چې په ( ۱۵۵۶ _ ۱۵۸۸ ) کلونو کښې د هسپانیا پاچا وو او دری یم فلیپ چې په ( ۱۵۹۸ _ ۱۶۲۱ ) کلونو کښې د هسپانیی پاچا وو کوی.

د ۱۹۶۰ کال د فروری د ( ۱۵ ) نیټی د شمار له مخی یې ټول اوسیدونکی ( ۶۸۵ ، ۸۶ ، ۲۷ ) او په ۱۹۷۰ کال کې ۱۵۸۰۰۰ ، ۳۷) وو په قومی لحاظ اندونیزیا ، بوت پرستان او مالیزیایان هلته ژوند کوي ټول مساحت یې ( ۲۹۶،۴۶۰) کیلو متره مربع دی چې ۸۵ ٪ څمکه یې په ۱۲ جزیرو ویشل شوی ده ، د ملی ژبی لهجه یې ( لناجالرج ) ده چې مالیزیائی ژبی ته ورته ده ، خو اوس پکښې نوی فلیپنی ژبه ، انګریزی او هسپانوی ژبی په رسمی ډول ویل کیږی ، که څه هم څه د پاسه ۷۰ محلی ژبی هلته شته سره زر ، سپین زر ، جس ، زنګ ، ګوګړ ، اوسپنه ، قلائی ، سمټ ، سکاره ، پراخ زراعت ، مالداری او د تجارت ښکلی بندرونه ښه ډیر لری.

۲ - د مسلمانانو شمیر پنځه نیم میلیونه دی خو عیسائیان وائی چې مسلمانان ( دوه نیم میلیونه دی تیره پیړی مسلمانان د ټولی خاوری ۵۵ ٪ اوسیدونکی وو ، خو د پرله پسی وژنی او هغو جنګونو په نتیجه کښې چې له هسپانیا او جاپان سره یې کړی دی اوس ۱۲ ٪ ته راښکته شوی دی.

د فلپین د داخلي عیسایانو له خوا د[1] فردیناند مارکوس په مشرۍ او د امریکا په ملاتړ ورسره سخته او وژونکې جګړه روانه ده چې مسلمانان له پاتې برخو څخه هم وشړي او فلپین په بشپړ ډول د دوی په واک کې شي.
اوس پخوا لدې چې ننی او یا راتلونکې مشکلات یې وڅیړو غوره ده چې پخوانی تاریخ ته یې وګرځو چې اسلام په څه ډول هلته ولاړ؟ او څنګه اسلامي دولت جوړ شو؟

**لومړی : د اسلام داخلیدل**

فلپین ته اسلام په زوره ندی تللی.
اسلام د خلکو په خوښه هلته تللی دی، پدی خبره ټول تاریخ پوهان ان تردی چې هسپانیوی او هالیندی تاریخ پوهان هم اعتراف کوی.
خو څیړونکی په دی کې سره بیل، بیل دی چې د اسلام د خپرولو اساسی عامل څه وو؟
۱ : ځینی وائی چې د تاجرانو په واسطه اسلام خپور شوی دی.
مسلمانانو تاجرانو په نهمه پیړۍ کې د تجارت په واسطه اسلام هلته یوړ.
همدا څیړونکی دوه رنګه خبری کوی : ځینی وائی د تاجرانو اصلی هدف اسلام خپرول وو تجارت یې ضمنی کار وه، او ځینی نور وائی چې اصلی هدف تجارت وه د اسلام په لور دعوت یې ضمنی کار وه.
په هر صورت اصلی هدف چې هر څه وو تجارت وو او که دعوت خو مسلمانو تاجرانو په نهمه پیړۍ کې دی خاوری ته اسلام راووړ، په نیکو اخلاقو او روغه معامله یې د خلکو زړونه فتحه او د فلیپنی ښځو په وده

---

[1]- مارکوس د فلپین د خلکو د مظاهرو په نتیجه کښې امریکا ته ولاړ، هلته مړ او اوس اکینو نومی ښځه د فلپین مشری کوی، اکینو په لومړیو شپو ورځو کښې مسلمانانو سره د خپلواکۍ او داخلی ازادۍ وعده وکړه خو چې واکمنی یې ګلکه شوه وعدی یې ماتی او له مسلمانانو سره یې سختی او ظلم ته دوام ورکړ[ ژباړن ]

ولو سره اسلام لا زيات خپور چې بالاخره يې واکمنان هم پدی پاک دين مشرف شول.

ب } ځينی وائی اسلامي بلونکو او مبلغينو اسلام خپور کړی دی ، پدی معنی چې يوازې اسلامي بلونکی وو چې په فلپين کې يې اسلام خپور کړ.

دا بلونکی د تجارانو سره يو ځای او يا وروسته له تجارانو هلته تللی وو ، د دی خبری پوخ دليل دا هم کيدای شي چې په ۱۲۵۸ م کال کې د عباسی خلافت د له مينځه تللو سره زيات علماء او پوهان له بغداد څخه د لری ختيځ په لور هغو ځايونو ته مهاجر شوه چې له دوی څخه مخکې مسلمان تجاران هلته تللی وو.

ج } ځينی وائی چې صوفيانو او د طريقو خاوندانو اسلام خپور کړی دی ځکه د طريقو بلونکی هغه خلک وو چې د دين د خپرولو لپاره به د نړۍ کوټ ، کوټ ته تلل ، هغه نه وو لکه ځينی تاريخ پوهان چې وائی چې په کونجونو کې به يې شپی رڼا کولی.

بلکه هغه فعال او ګرځندی خلک وو چې د زمانی د غوښتنو ځواب يې درلود او د اسلامي تمدن ځرګندونه يې کولای شوه.

د } ځينی وائی سياسي حالاتو د اسلام په ژر خپرولو کې مهم لاس درلود پدی معنی چې هغو محلی واکمنانو چې اسلام يې منلی وو د اسلام په خپرولو کې زيات رول درلود ، او دوی هم ځکه اسلام منلی وو او د اسلام د خپرولو لپاره يې کار کاوو چې له اسلام څخه د وسلی په صفت د هندوانو په خلاف کار واخلی.

دا ځيرونکی وائی چې اقتصادي مسايلو محلی واکمنان او مسلمان تجاران سره تړلی وو چې د تجاّرت په ډيرو پروګرامونو کې سره شريک او د بحری تجارت د زياتو مرکزونو تړل او فعالول د مسلمانانو په واک کې وو.

ه } او ځينی وائی اسلامي عقيده وه چې په خپله يې لار خلاصه کړه.

د دی نظر خاوندان وائی چې اسلام هغه مستقل او ځانګړی دين دی چې بشری پرګنی په خورا چټکتيا سره تر خپلی اغيزی لاندی راوستای شي.

هو ! که څه هم په جنوب ختیځه اسیا یعنی جاوا اندونیزیا مالیزیا او فلپین کې بشپړ اسلامي نظام نه وو حاکم شوی خو په عملی ډګر کې خورا لوی قوت وو ، بالخصوص شافعی مذهب چې د هغی خاوری یواځینی مذهب دی له بدعتونو او جاهلی عاداتو سره زیات ټکر لری.

د دی خبری په څنګ کې دا هم ورزیاتولای شو چې هلته د اسلام خپریدل د صلیبی جنګونو ردفعل وو هغه صلیبی جنګونه چې په عربی وچه کې پیل او رد فعل یې په اندلس کې ښکاره او بالاخره یې په جنوب لویدیځه اسیاء کې هم څرک وواهه.

او پدی توګه دا په ډاګه شوه چې زمونږ دغی خاوری ته اسلام په څه ډول داخل شو.

تاریخ پوهان که هر څومره جلا ، جلا نظری ورکوی خو ټول پدی خبره کې په یوه خوله دی چې اسلام هلته په زور ندی تللی بلکه خلکو په خپله خوښه منلی دی

خو زه وایم که مونږ د اسلام خپریدلو بنسټ یوه عامل ته ورکړ دا به مو له تاریخ او اسلام تیری کړی وی.

څکه یو هوښیار او ژور اسلام څیړونکی د اسلامي عقیدی له ژر او چټکی اغیزی څخه چې د خلکو په زړونو کې یې کوی هیڅکله سترګی نشی پټولی ، او نه دا هیرولی شي چې اسلام هغه توصیه له ځان سره راوړی ده چې انسان د بشر او ډبرو له غلامۍ څخه لوړ مقام ته رسوی ، داسی برابری مینځ ته راولی چې د سپین او تور ، سره او زیړ بډای او ناتوانه غوره والی او بد والی له مینځه وړی.

او نه تاریخ پوهان د مسلمانانو تجارانو له رول څخه سترګی پټه ولای شي چې د هغوی کړنی اخلاق او عادات یې د خلکو د بلنی لپاره خورا ګټور او اغیزمن ثابت شوی دی او نه د هغو بلونکو له رول څخه انکار کولای شي چې د تصوف په لباس کې یې د اسلام د خپرولو لپاره کار وکړ ، او همدا

ډول د هغو سیاسي او اقتصادي عواملو نوم ځوک نشي هیرولی چې د اسلام په خپرولو کې موثر وو.

نو په پای کې ویلای شم چې پورتنیو ټولو عواملو په ګډه سره د اسلام په خپرولو کې مهم رول لوبولی دی خو لومړنی او مهم قدم مسلمانو تاجرانو اخیستی دی.

نو ځکه باید نن نی مسلمانان خپلو کړو ، عاداتو ته پاملرنه وکړی تر څو د دعوت په لار کې مهم او قدرمن رول ولوبولی شي.

**دویم } اوسنی فلپین**

د څلورو پیړیو جهاد :

زمونږ مسلمانو ورونو هلته څلور پیړۍ جهاد ته دوام ورکړ ، دری سوه کلونه یې له هغو هسپانویانو سره جهاد وکړ چې د تجارت په بهانه د ۱۶ پیړۍ په پیل کې هلته راغلل او د عیسائیت په لور بلنه یې اصلی دنده وه ، غوښتل یې چې په فلپین کې هم د اندلس غم تکرار او هغه صلیبی جنګ چې په ختیځ اسیا کې ناکام او په اندلس کې بریمن شوی وو بیرته ختیځی آسیا ته رانقل کړی.

او لدی وروسته یې له جاپانی بوت پرستانو او د امریکائی لاس پوڅو عیسایانو سره جهاد ته دوام ورکړی دی ، آن تردی چې د دویمی نړیوالی جګړی وروسته عیسایانو د مسلمانانو د بالکل د له مینځه وړلو لپاره دولس خطرناکی او پریکنی حملی کړی دی خو مسلمانانو په مسلسل ډول خپل جهاد ته دوام ورکړی دی.

د مورو آزادی غوښتونکی جبهه د جهاد بیرغ رپوی

د جهاد په آخرینو وختونو کې ( ۵۰۰۰۰) مجاهدینو د شهادت لوړ مقام خپل او د قربانۍ او فدکارۍ هومره لوړی نمونی یې وښودلی چې د اسلام د لومړنی کاروان یادونه یې تازه کړه ، د مدینی منوری د اسلامي پوهنتون څخه فارغ عبدالباقی عبدالرازق په یوه داسی خونړۍ جګړه کې شهید کیږي چې ۳۰۰ کافران د جهنم توری کندی ته غورځوی د کافری اردو ټوله

وسله په غنیمت اخلي ، په مقابل کې یوازې نه مجاهدین زخمي او څلور شهیدان کیږي.

د دنیا په تله کې بریمن او د آخرت بریالیتوب یې له ټولو او هر څه ستر دی.

همدا ډول د دښمن د وحشت هم د تاریخ یو نمونه یې وحشت دی د ۱۹۷۱ کال د جون په میاشت کې د دښمن قواوی د کوتاباتو ولایت د کار ښار د نیلي کلي په جومات حمله کوی ۶۱ لمونځ کوونکی شهیدانوی او ۳۲ زخمیان کیږی ، مړی د جومات په انګړ کې له خاورو لاندی کوی د مسلمانانو د بدن غړی لیلام ته وړاندی کوی.[1]

د ( ۱۹۷۱ ) کال د جولائی د میاشتی په ( ۲۱ ) نیټه د مانیلا والی د پوهنتونو د رئیسانو په جلسه کې وائي : زمونږ ننه نی کانفرانس د مانیلا د عیسائی کیدلو د څلور کلن جشن په مناسبت دی کله چې څلورسوه کاله پخوا هسپانیاویانو د ( تولسندد ) په ښار کې آخرنی مسلمان حاکم راجه سلیمان او د بایج په ښار کې آخرنی مسلمان واکمن راجه لاکندولا له مینځه یووړل.

مجاهدین روپو او وسلو ته اړتیا لری

مجاهدین د ایمان او عقیدی له اړخه هیڅ کمبود نه لری ، دوی هغه خلک دی چې د صلیبیانو د واک لاندی سپک ژوند څخه مرګ ډیر خوښوی ، پنځو سو زرو کسانو خپلې وینی ورکړی خو په خورا خواشینی سره باید ووایو چې د روپو د نشتوالی سره مخ دی مګر ځینی د اسلامي هیوادونو د ځینو واکمنانو روپی د اروپا په قمار ځایونو او فساد مرکزونو کې په مصرف رسیږی.

---

۱ - د فلپین مسلمان ورونه وائی چې د مسلمانانو د بدن د غړو نرخ په لاندی ډول دی :

غوږ سل فلپینی روپی - پوزه سل فلپینی روپی - ګوته پنځوس فلپینی روپی - ورغوی دوه سوه پنځوس فلپینی روپی - سترګه زر فلپینی روپی.

او د موثوقو ویونکو په حواله په ۱۹۷۷ م کال کې یوه مست عرب لدی کبله چې د روپو د لګولو او مصرفولو بل ځای یې نه وه پیدا کړی موټر یې له نوټونو څخه ډک کړی او په بازار کې یې خورا په تیزوالی حرکت کاوه ، چې د موټر له ښیښو څخه نوټونه د یو د بل پسی له موټر څخه الوتل ، او خلکو ب ٔ پدی مست عرب خندل.

## د سولی تړونونه

ټول تړونونه د ۱۹۷۷ کال د اپریل د میاشتی په ۲۶ نیټه له پښو لاندی او تړون کوونکی مسلمانان پوه شو چې د فلپاین حکومت د دی لپاره له معاهدی څخه سرغړونه کوی چې په جنوب ګې یې د مسلمانانو په ضد شومه نقشه پلی کړی.

د فلپینی حکومت د ۱۹۷۷ کال د اپریل د میاشتی په ۳۰ نیټه په رسمی ډول ټول تړونونه لغوه اعلان کړل.

مسلمانان خپله کړکیچنه ستونزه د اسلامي هیوادونو د بیرونیو چارو وزیرانو هغی اتمی ونډی ته وړاندی کوی چې د ۱۳۹۷ کال د جمادی الاول ۲۷ نیټی څخه د جمادی الثانی تر ۳ نیټی چې چې د ۱۹۷۷کال د می د میاشتی ۱۶ څخه تر ۲۲ نیټی سره سمون خوری په طرابلس کې جوړه شوی وه.

د مورو د متحدی جبهی رئیس ښاغلی ( نور مسواری ) غونډی ته وائی : که څه هم د مجاهدینو هدف دا وو چې باید بشپړه خپلواکی ترلاسه کوی خو لدی کبله چې د بیرنیو چارو د وزیرانو غونډی پریکړه کړی ده د بشپړی خپلواکۍ پر ځای یوازې په داخلی خپلواکۍ هم قناعت کوو.

خو د اور بند له ورځی څخه تر اوسه د فلپین حکومت دوه سوه ځله تیری کړی دی.

بندیان مجاهدین یې خلاص نکړل ، هغه ځمکی یې چې په زور نیولی دی بیرته یې خاوندانو ته ورنکړی ، جنوبی فلپین ته یې عسکری قواوی نوری هم ولیږلی او هم د فلپین حکومت هوډ کړی دی چې د اردو شمیر به له یو لکو تنو څخه ( ۲۵۶۰۰۰ ) تنو ته زیاتوی.

او پدې ترتیب د فلسطین مصیبت یو ځل بیا تکرار شو.

او یو ځل بیا ثابته شوه چې د جنګ په دوران کې مؤقته سوله د دښمن په ګټه وي د نړیوال ملاتړ په سیوری کې اسلامي کانفرانس یو ځل بیا د فلسطین د مسلمانانو په هکله خپله پاملرنه ښکاره او د فلپین حکومت د منفي کړنو څخه یې کرکه اعلان او ویې ویل چې د ټولو تړونونو د ماتوالي مسئولیت د فلپین حکومت په غاړه دی.

لدې ټولو سره ، سره یې بالاخره لاندېنۍ مهمه اعلامیه خپره کړه.

اسلامي کانفرانس یوه څلور کسیزه هیئت ته وظیفه ورکوی چې د هغو پریکړو په رڼا کې چې پخوا لدی کانفرانس کړی دي د دواړو جګړه کوونکو ډلو تر مینځ منځګړیتوب پیل کړي.

## دریم : راتلونکی فلپاین

یوازې د الله جل جلا له د خوښې د ترلاسه کولو په هیله پدې هکله وایم.

کله هم چې مجاهدین وسله په ځمکه کېږدي ، اصلي هوډ شاته وغورځوي اجازه ورکړي چې نور د دوی پر ځای پریکړې وکړي او د جهاد په ځای سیاسي هلو ځلو ته مخه کړي نو له هغه څه سره به مخ شي چې فلسطیني اولس ورسره هغه وخت مخ شوی چې وسله یې وغورځوله سیاسي لوبې یې پیل او نورو یې په ځای پریکړې وکړې خو که بیرته یې جهاد ته مخه کړه وسلې ته یې لاس او د ( حکومتونو په ځای یې ) د مسلمانانو اولسونو ملاتړ تر لاسه کړ نو کومک او سوبه د الله په لاس کې ده الله جل جلاله له هغه چا سره مرسته کوي چې د هغه د دین لپاره ملا وتړي بیشکه الله پاک توانا او غالب دي.

## څلورم څپرکی ( فصل )

## له خطر سره مخ وطنونه

په لومړی فصل کې مو له لاسه وتلی وطنونه په دویم فصل کې د مجاهدو وطنونو او پدی فصل کې به د هغو وطنو په هکله لیکنه وکړو چې له خطر سره مخ دی.

نو وایم : که له مونږ څخه په زوره اخیستل شوو خاورو د بیرته لاس ته راوړلو لپاره جهاد فرض عین او د مجاهدو وطنونو سره لاس کول فرض کفائی دی ، نو له هغو وطنونو څخه د خطر دفع کول چې ورسره مخ دی فرض عین ځکه دی که مونږ د خطر مخه ونه نیسو نو خدای مکړه دا وطنونه به هم زمونږ له لاسه ولاړ او د لومړیو وطنو په شان به شی او هغه وخت به بیا پښیمانتیا ګټه ونه لری

په لومړی سر کې د افغانستان او بیا د اندونیزیا په هکله لیکنه کوم.

د اندونیزیا لوی اسلامي دولت له دوه خطرونو سره مخ دی یو خطر د کمونیزم او بل د عیسائیت دی.

بیا د ( مصر ) اسلامي هیواد په هکله لیکنه کوم چې د عربی او اسلامي د هیوادونو په مینځ کې خورا مهم او استراتیژیکی موقعیت لری خو نن یې خطرونه تهدیدوی او په آخر کې د لبنان په هکله لنډ معلومات وړاندی کوم.

## افغانستان

### موقعیت او اهمیت یې

افغانستان د اسیا په ختیځه برخه کې پروت دی چې د ایران ، پاکستان د چین د مسلمان اوسیدونکو منطقو تاجکستان ، ترکمنستان او ازبکستان سره شریکه پوله لری غرنی استراتجیک موقعیت لری ، مساحیت یې ۶۵۰ زره کیلو متره مربع دی.

نفوس یې نژدی اتلس میلیونو ته رسیږی چې ۹۹ ٪ یې مسلمانان دی د ازفیستیا اخبار په ( ۱۹۴۸ ) کال کې د پاکستان د اسلامي جمهوریت د جوړیدو په سباء لیکی :

د روسی کمونستی حزب وظیفه لری چې دغه نوی جوړ شوی دولت چې د اسلامي عقیدی په اتکاء جوړ شو باید ډیر ژر له مینځه یوسی.

ځکه دا د هغو اسلامي ریاستونو چې اوس د روسانو په لاس کې دی موجودیت ته خورا لوی خطر دی.

پورتنی هدف د هند په ملاتړ تر لاسه او د پاکستان اسلامي جمهوریت د دی لپاره چې ناتوانه او بی وسی شی په دوه جلا هیوادونو ، پاکستان او بنګله دیش سره وویشل شو.

او همدا ډول د روسی له پولو سره جوخت د افغانستان موجودیت چې د اسلامي ځمکو سره هم تړلی پولی ولری همغه شان خطر دی.

نو باید همغه ډول معامله ورسره وشی لکه څنګه چې د پاکستان سره وشوه.

د هدف ته د رسیدلو لپاره دسیسی جلا ، جلا وی ، خو هدف یو.

هدف همدا دی چې په هغو اسلامي وطنونو کې چې د روسی په پولو کې پراته دی د اسلامي نظام د واکمن کیدلو مخ نیوی باید وشی.

## د پخوانی تاریخ یو څنډه

پخوا له اسلام څخه افغانان بودایان وو له بودایت سره یې ډومره زیاته مینه او علاقه وه چې د بامیان په غره کې یې د بودا پنځوس متره د لوړه مجسمه جوړه کړی وه چې اوس هم د بامیان په غره کې پرته ده رسمی ژبه یې سنسکریتی ژبه وه.

د بودائیت اساس په ( کاوما ) ولاړ دی او د ( کاوما ) معنا دا ده چې د عملونو بدله په دنیا کې ورکول کیږی له مرګ څخه وروسته سزا او جزاء نشته.

بلکه د عمل بدل د تناسخ په اسلوب ورکول کیږی نو په دی ژوند کې بد روح ته پدی ډول جزاء ورکړ شی چې بد کرداره بدن ته یې ورنقل کړی او نیک روح غوره او نیک بدن ته نقل شی.

په همدی توګه سستیا او تنبلی ته غوره ویل شوی په سوال او نورو ته لاس اوږدولو او نورو پریوتو لارو سره مال پیدا کول یې غوره او ښه ګڼلی دی.

د حضرت عمر رضی الله عنه په خلافت کې د فارس فتحه هغه لویه او درنه فتحه وه چې په نتیجه کې یې د اسلام وړانگې د حضرت عثمان رضی الله عنه په زمانه کې تر کابله ورسیدی ، لدې وروسته افغانان له اسلام نه مرتد شول

خو د لومړۍ پیړۍ تر پایه ټول افغانستان د اسلام په مبارک دین داسی مشرف شو چې تر نن پوری یې پری منگولی لگولی او په لار کې یې هر ډول قربانۍ ورکوی

د افغانانو په واسطه اسلام هند ته ولاړ او همدا ډول د دوی په واسطه اسلام تر بخاری او نورو ماوراء النهر ملکونو او ان د چین تر دیوال پوری ورسید

د اسلام سره جوخته عربی ژبه د افغانستان رسمی ژبه شوه خو د غزنویانو په آخرنیو وختونو کې رسمی ژبه فارسی ( دری ) وگڼل شوه او بیا وروسته پښتو ، فارسی او پښتو دواړه په عربی رسم الخط لیکل کیږی چې په فارسی کې څلور توری له عربی څخه زیات او په پښتو کې شپږ توری له فارسی څخه زیات دی

امام احمد بن حنبل د مروی وو چې د افغانستان په شمال کې پروت یو ښار دی

همدا ډول یې امام فخر رازی ، امام بیرونی ، فارابی ، ابن سینا د شاهنامی لیکوال فردوسی او دا ډول نوری هستۍ هم وړاندی کړی دی

**افغانستان د تاریخ په نوي درشل کې** :

افغان اولس پدی شهرت لری چې په دین یې پوره منگولی لگولی ، په جهاد کې یې پوره مړانه ښوولی او د ښکیلاک گرانو ټولی لومی یې شکولی دی

دا اولس هغه وخت د خپل پادشاه امان الله خان په ضد پورته او هغه یې له تخت څخه لری کړ چې بی پردگی یې افغانستان ته راوړه او خپله ښځه یې لوڅه بازار ته راویستله

انګریزانو هم د هند له نیولو وروسته څو ځل په لاندی کلونو کې هڅه وکړه چې افغانستان ونیسی.
په ۱۸۳۸ _ ۱۸۴۸ میلادی کلونو کې،
په ۱۸۷۸ _ ۱۸۸۱ میلادی کلونو کې
په ۱۹۱۹ _ ۱۹۲۱ میلادی کلونو کې
هر ځل د انګریزانو فوځ په بشپړ ډول د هغو افغانانو په مقابل کې له مینځه ولاړ چې د اسلام د لوړ بیرغ لاندی یې جهاد ته ملاتړلی وه.
افغانانو هم هڅه وکړه چې خپل اسلامي نفوذ د ماوراء النهر ملکونو ( بخارا ، ثمرقند ، تاشکند ، ترکستان ، ازبکستان او آذربائیجان ) ته پراخ کړی خو تقدیر بل څه وو ، د امان الله خان په وخت کې کمونستانو هڅه وکړه چې د افغان ولس په رګونو کې ځای ونیسی چې د دی هدف لپاره لینن د امان الله خان سره د دوستۍ تړون وتاړه خو افغان اولس ژر د پیښې ورانوالی ته متوجه او له همدی ورځی څخه اسلامي فکر په ټوکیدنه پیل وکړ چې د حوادثو د تکرار سره پوخ او لوی شو.

## افغانستان او کمونیزم

د داود خان د صدراعظمۍ په دوران کې چې په ۱۹۵۲ کال کې له شاه محمود خان څخه وروسته صدر اعظم شو د مسکو د خط پیرو کمونستی حزبونو ( خلق او پرچم ) بنسټ کیښودل شو داؤد خان هڅه وکړه چې د روسانو د هیلو په رڼا کې د هغوی له پولو څخه د اسلامي فکر خطر لری کړی د افغانستان په داخل کې یې د کمونستانو د فعالولو لپاره زمینه برابره کړه او په خارجی تجارت کې یې په روسانو تکیه وکړه چې ( ۶۵ ٪ ) قرضونه یې له روسانو څخه ترلاسه او روسانو ته یې موقع ورکړه چې د افغانستان په تعلیم او تربیي او پلان جوړولو کې پوره لاس ولری.
او هم یې هڅه وکړه چې د روسانو پروګرام په نورو ګاونډیو هیوادونو کې پلی کړی.

د کی ، جی ، بی غړی د خپل کتاب د نیو فسکی یاد داشتونو په ۱۱۱ - ۱۱۷ مخ کې لیکی:

ما او د کی ، جی ، بی او د جی ، آر ، یو جاسوسی شبکو غړو خو ځل د داود خان سره د هغه د صدراعظمۍ په وخت کې ولیدل او موافقه مو وکړه چې په پاکستان کې ګډوډی رامینځ ته ، د اوبو ذخیرو ته زهر واچوو بمونه خلاص ، او د ولتی تاسیسات له مینځه یوسو.

او پریکړه مو وکړه چې د افغانستان اردو ته نوی وسله او په پاکستان باندی د یرغل لپاره د تیاری په تکل په روسیه کې عسکری روزنه ورکړو.

خبره هغه ځای ته ورسیده چې په پټه یې له روسانو سره تړون لاس لیک کړ چې په شینډنډ کې به روسانو ته هوائی اډه ورکوی تر څو روسان له شینډنډ څخه د پاکستان او ایران د پولو څارنه وکړی.

د دی کارونو په اړخ کې یې په دین او د دین په عالمانو حملی وکړی د ښځو لوڅوالی یې ضرور او احکام یې صادر کړل چې په پوهنتون کې هلکان او نجونی یو ځای او د هلکانو او نجونو ګډ ښوونځې باید جوړ شي.

کله چې د ده څیره رسوا او پروګرامونه یې افشاء شو نو د واکمنۍ څخه لاس په سر شو خو په خورا بی حیائی سره یې هڅه وکړه چې ملګری یې مظاهری وکړی او د دی وینی بیوونکی قاتل د بیا راتلو غوښتنه وکړی.

لومړني انقلاب :

د ۱۹۷۳ کال د اپریل په ۱۷ نیټه دغه ناځوانه سړی د خپل کاکا زوی د کمونستی حزبونو ( خلق او پرچم ) او د روسانو په کومک له تخت څخه راوغورځاوو.

له اسلامي فکر سره یې مقابله پیل او اجازه یې ورنکړه چې فعال قدمونه واخلی.

په پوهنتون کې نوی جوړیدونکی اسلامي تحقیقاتی مرکز یې بند ، او د حاجیانو شمیر یې له ( ۱۷۰۰۰ ) څخه څلورو زرو ته راښکته کړ خو چې د عام ذهنیت له بدوالی سره مخ شو نو یوازې زر نورو کسانو ته یې هم د حج اجازه ورکړه.

د عدلی وزارت ابلاغیه خپره کړه چې د کمونیزم او د هغه د مشرانو په خلاف فعالیت کول جرم دی او باید کوونکی یې جزا ووینی او د روسانو لاندنیو اهدافو د پوره کولو په لار کې یې ځان هم غړی کړی چې عبارت دی له
۱ - د الحاد او بی دینۍ په خبرولو سره د اسلامي تحریک مخنیوی
۲ - ګرمو اوبو ته رسیدل
۳ - د افریقا او اروپا براعظمونو په نیولو کي له امریکا څخه وړاندی والی
۴ - چین باید لوی زواک نشی
۵ - د نفتو د ځاګانو د تر لاسه کولو لپاره باید عربی وچه د شمال او جنوب له لوری په ولکه کې ونیول شي
د داوُد خان د بیانیو په ځانګړۍ ډول د ( ۱۹۷۵ ) کال د انقلاب د کلیزی په مناسبت بیانیی یې د انقلاب هدفونه داسی په ګوته کړل :
۱ - ارتجاع باید له مینځه ولاړه شی ( معنا یې دا ده چې اسلام باید له مینځه ولاړ شی )
۲ - ملی تمدن باید راژوندی شی ( یعنی بوت پرستی او اور پرستی )
۳ - هنر او هنرمندانو ته باید خاصه پاملرنه وشی ( تر څو بد اخلاقی زیاته شی )
۴ - سوسیالیزم باید عملی شی ( تر څو د اسلام د عملی کولو چانس ختم شی )
۵ - د پخوانی او عنعنوی افکارو په نوم نوی هلی ځلی باید وشی ( تر څو د اسلامي فکر او عقیدی مخه ونیول شی )
د پورتنیو هیلو د پوره کولو لپاره دی انقلاب لاندی کارونه وکړل :
الف : بند او ډار
هغه څه چې د شرعیاتو د پوهنځی د استاد مولوی حبیب الرحمن او د هغه د کورنۍ[1] د ساینس د پوهنځی زده کوونکی عطاء ګل او د هغه د کورنۍ

---

۱ - شهید مولوی حبیب الرحمن یې په لغمان کې وینو ، په غاړه کې یې ورته څادر واچاوو او په ښار کې یې کش کړ ، سپین ږیری پلار یې مولوی عبدالحی هم زندان ته یووړ ، دوه ورونه هر یو شهید فضل الرحمن او شهید عزیز الرحمن هم یې بندیان کړل کاکا یې شهید علینګاری او د کاکا زوی

، او د ډاکټر محمد عمر او غلام محمد نیازی او د اسلامي تحریک د نورو غړو سره وشو خورا بوګنوونکی دی .
چې په نتیجه کې زیات خلک غرونو او یا ګاونډیو هیوادونو ته مهاجر او ( دیرش زره زندانو ته ولاړ دا ټول د واکمن ټولی د تیریو څرګندونه کوی .
ب : څه د پاسه څلور زره روسی مشاورین یې چې زیات یې د ( کی ، جی ، بی ) غړی وو راوغوښتل
دویم کمونستی انقلاب :
هغه اداری فساد ، اقتصادي نیمګړتیاوی او سیاسي ګډوډۍ چې د داود خان د انقلاب په سیوری کې خپل اوج ته ورسیدی او بالاخره د داوٗد خان او د ( خلق او پرچم ) د حزبونو تر مینځ اختلافات د دی باعث شو چې کمونستان د خلکو د ستونزو څخه د ګټی اخیستلو په منظور د نوی انقلاب لپاره هڅه وکړی .
خلق او پرچم هم د نور محمد ترکی په مشرۍ متحد شوی وو .
د کودتا په شپه ځینو عسکری صاحب منصبانو له داود خان سره تماس ونیو او د یوی لوی مظاهری څخه یې خبر کړ ، او اجازه یې ترۍ وغوښته چې د ارګ د ساتلو لپاره ځینی ټانګونه فعال او د جمهوری ارګ په چاپیریال کېودروی . ټانګونه د جمهوری ارګ په چاپیریال کې پداسی ډول ودریدل چې مخونه یې بیرون خواته وو ، خو چې د کودتا لپاره ټاکلی وخت

---

شهید ګل رحمن یې هم بندیان کړل . چې په (۱۳۵۸ کال کې ټول بندیان د کمونستانو له خوا د کابل په زندان کښې په شهادت ورسیدل .
د دی شهید پروری کورنۍ پاتی غړی خور ، مور او پلار یې چې له زندان نه راخوشی شوی وو په پاکستان کې د هجرت په ژوند کښې ﷲ ته ورغلل ﷲ دی د دوی قربانیانی قبولی کړی د عطاء ګل ورونه یې بندیان او کور یې تالا کړ یو ورور یې د وهلو په دوران کې شهید شو او په خپله عطاء ګل چې وروسته یې د ننګرهار د آدم خان په نوم شهرت پیدا کړ له اوږده او قهرمان جهاد وروسته د روسانو په مخامخ جګړه کې په شهادت ورسید [ ژباړن ]

یعنی ( دولس بجی او څلور دقیقی ) راورسید مخونه یې د ارګ په لور وړول او ارګ یې له اوسیدونکو سره په بل مخ چپه کړ ، او د ۱۹۷۸ کال د اپریل د میاشتی ( ۲۷ ) نیټه یې د افغانستان په تاریخ کې د افغان ولس د وینو د سیلاب بهیدونکی ورځی په نوم ثبت کړه .
ویل کیږی چې په همدی لومړۍ ورځ څه د پاسه اتیا زره کوچنیان ، ښځی او ځوانان او زاړه ، چې د اسلامي تحریک نومیالی غړی ، علماء او فکری خلک هم پکې شامل وو ووژل شول .
درېیم کمونستی انقلاب :
دری یمه کودتا د صدراعظم حفیظ الله ( امین ) له خوا د ۱۹۸۹ کال د ستمبر د میاشتی په ( ۱۶ ) نیټه د دولت د رئیس نور محمد ترکی په وژلو پلی شوه ، حفیظ الله امین په ( ۱۹۵۷ ) کال کې د امریکا په یوه پوهنتون فاکولته ولوسته او په ۱۹۶۲ کال کې یې لوړی زده کړی په امریکا کې پای ته ورسولی ، د زده کړی په دوران کې یې د چپی زده کوونکو ډله رهبری کوله او کابل ته تر راتګ وروسته یې له ترکی سره د خلق حزب په تأسیس کې برخه واخیسته .
امین هڅه وکړه چې له واکمنۍ وروسته له مجاهدینو سره اړیکی ونیسی او اوربند مینځ ته راولی خو مجاهدینو خپل جهاد ته دوام ورکړ .
څلورم کمونستی انقلاب :
دری نیمی میاشتی هم لا نه وی تیری شوی چې د ( ۱۹۷۹ ) کال د دسمبر د میاشتی په ( ۲۷ ) نیټه د روسانو په مستقیم ملاتړ څلورم کمونستی انقلاب پلی شو .
د امریکا له خوا د ورکړو شوو معلوماتو له مخی پدی ورځو کې د روسی او کابل تر مینځ هوائی پول جوړ شوی وو چې ( انتینو سینوف ) نومولو یو د ( ۱۵۰ ) الوتکو په واسطه څه د پاسه لس زر عسکر ، ټانګونه ، او نور عسکری او نظامی مواد نقل کړل روسی منابعو هم څه موده وروسته پورتنی معلومات تائید کړل .

روسی قواوو حفیظ الله امین له مینځه یوور او په ځای یې بل نوکر د پرچم د حزب مشر او د ۱۳۵۷کال د انقلاب په نتیجه کې د جوړ شوی حکومت او مرکزی کمیتی مرسیتال ببرک کارمل په تخت کیناوو.

ببرک کارمل د خلق او پرچم د هغه یووالی چې په ۱۹۶۵ کال کې یې دواړه حزبونه سره یو کړی وو او د هغه داخلی اختلاف له مخی چې په ۱۹۷۷ کال کې پیښ شوی وو مینځ ته راغی په ۱۹۷۸ کال کې په چکو سلواکیه کې سفیر وټاکل شو د اختلاف د زیاتوالی له کبله له سفارت څخه هم لری او په شرقی اروپا کېیې تر هغو پټ ژوند ته دوام ورکاوو چې د روسانو په واسطه د کابل په تخت کینول شو.

کارمل د حفیظ الله امین د خپل انتقام او غچ اخیستلو په منظور فوراً د یوی نظامی محکمی په واسطه د راتګ په دوه یمه ورځ اعدام کړه د ډیرو روسي لیکوالانو د لیکنی له مخی دا خبره اوس پخه ښکاری چې هغو روسی مشاورینو او کار کوونکو چې د کابل په ارګ کې یې له امین سره نژدی اړیکی وی ، د ۱۹۷۹ کال د دسمبر په ۲۶ نیټه یې لومړی حفیظ الله امین ته زهرجن شراب ورکړل او بیا یوه روسي جنرال د امین په خپله تمانچه هغه جهتم ته ولیږه ، په ډیرو لږو ورځو کې د روسي عسکرو شمیر ۱۲۰۰۰۰ تنو ته ورسید چې په ټول افغانستان کې خپاره او د مجاهدینو په ضد عملیات یې سریع کړل.

خو مجاهدینو هم د روسی ګوډاګیانو او د سره پوځ په ضد خپل اسلامي جهاد ته د سرونو په قیمت دوام ورکړ.

کمونستی کودتاګانی د څه لپاره ؟

څکه چې په کابل کې د کمونستی رژیمونو پښی سستی وی.

که د رژیم پښی کلکی وای نو روسان به دی ته نه وو اړ شوی چې ترکی یې له مینځه لری او بیا یې یوازې ۳,۵ میاشتی وروسته حفیظ الله امین هم له مینځه یوور.

او که د رژیم پښې ټینګې وای نو روسان به دغه ستر او لوی تیری ته نه وای اړ شوي چې د روس له خاورې یې بیرون د کمونیزم نه د دفاع په خاطر سرې لښکرې ولیږلې.

البته دا وړ تیری یې له دې څخه وړاندې په ۱۹۵۶ کال کې په چکوسلواکیه او په ۱۹۶۸ کال کې په پولینډ هم کړی وو.

ځکه چې روسان لدې څخه مایوس شوي وو چې د نورو کمونستي هیوادونو په شان دې افغاني کمونستان د افغان مجاهد ولس د کلکې اسلامي عقیدې او د جهاد سره د پخې مینې له کبله کمونستي نظام په پښو ودروي.

د دې ښکارندوی دی چې که اوسنی نوی مشرتابه د روسانو هیلې ډیر ژر په افغاني ولس ونه تپلې دې به هم له مینځه یوړل شي [1]

افغان مجاهد اولس جهاد ته ملا وتړله:

کمونستان بې له زور څخه بل منطق نلري نو افغان اولس هم بې له وسلې پورته کولو څخه بله چاره ونه لیدله په زرګونو خلک غرونو ته پورته او د مسلمانانو مشرانو په لارښوونه یې مقاومت ته ملا وتړله.

د کابل کمونستو واکدارانو د دې لپاره چې وښائي چې ګنې د مجاهدینو د مصر له مجاهدینو سره اړیکې دي او ترڅو چې د مصر پریوتي واکداران د هغه ځای د مسلمانو ځوانانو په ضد وهڅوي مجاهدین یې د ( اخوان المسلمین ) په نوم ونومول.

مجاهدینو د جهاد بیرغ په خورا میړانه او زغم سره لوړ او اوچت وساته، غوره او نومیالیو ځوانانو خپل ځانونه له اسلام، او اسلامي خاورې څخه قربان کړل چې اسلامي خاوره د کمونستانو له ناپاکو قدمونو څخه پاکه، د

---

[1] - د کتاب د لیکلو وروسته مشر بدل او په ځای یې بدنام او فاسد ډاکټر نجیب الله چې د قاتل په نوم شهرت لري په تخت کیناوو. د ۱۳۵۷ د غوائي د کرغیړنې کودتا وروسته نوموړی د خاد د مشر په صفت ټاکل شوی وو چې په زرګونو بې ګناه مسلمانان یې ووژل چې بالاخر نجیب الله هم د ... له خوا په دار وځړول شو.

مسلمانانو ښځو عفت خوندی او د مسلمانانو ښه اخلاق او عادات ژوندی وساتل شي.
شهیدانو یو د بل پسې د شهادت لوبه ګرمه او خوټیدونکو وینو د رګونو وینې چې جوش راوستی ، اولس خپل هر څه د خدای په لار کې وړاندې کړل . ډیرو د کور هر څه وپلورل ترڅو یو میل وسله پرې راونیسي ، په غرونو کې له لوږې سره مخ خو په خالي نس یې جهاد ته دوام ورکړ.
مګر د اسلامي نړۍ په نورو ګوټونو کې ځینې مسلمانان له ډیر خورې څخه ناروغه او د اسراف کوونکو زاړه خوراکي مواد چې ضایع کوي یې د مجاهدینو او هغو اولسونو لپاره چې د لوږې او فقر په وسیله ډلې ، ډلې نصرانیت ته روان دي کافي او بس دي [انا لله وانا الیه راجعون].
سره لدې چې نړیوال کمونیزم پریمانه کومک د کابل د کمونستانو وکدارانو سره کوي خو مجاهدینو وکولای شو چې په خپل کم توان په تشو لاسونو د اسلامي پاکې او سپیڅلي خاورې زیاته برخه د کمونستانو له ناولو لاسونو څخه آزاده کړه.
او سره لدې چې نړیوال بې دینه نشراتي وسایل مجاهدین د انګریزانو او امریکایانو پورې تړي خو د افغاني اردو زیات صاحب منصبان له خپلو افرادو سره د مجاهدینو سره یو ځای کیږي چې د سرو لښکرو د مداخلې وروسته د مجاهدینو سره د یو ځای کیدونکو صاحب منصبانو تعداد نور هم زیات شوی دی.
د روسانو له مستقیمې مداخلې نه لا وړاندې مجاهدینو د افغانستان دړې برخې آزادې کړې او خورا مهم ښارونه یې لاس ته راوړي ، او د اردو زیات صاحب منصبان له دوی سره هغه وخت یو ځای شو چې روسانو مستقیمه مداخله وکړه.[1]

---

۱ - افغانستان د افغان ولس د قربانیو او سرښندنو په نتیجه کې د الله پاک د احسان او لورینې له مخې د روسانو له ناولي زبیښناک څخه خلاص شو ، روسان په شرمیدلي ماتې سره له افغانستان څخه.

وتلو وروسته يې هڅه وکړه چې په کابل کښې د روسانو لاس پوڅې رژيم د ډاکټر نجيبت الله په مشرۍ د اوږدې زمانې لپاره پاتې شي
ډاکټر نجيب الله د وسلو او زور په ځاى له پيسو او نورو غولوونکو وسايلو څخه کار واخيست او ويې کولاى شو چې د روسانو له وتلو سره سم له سقوط څخه ځان وژغورى خو بالاخره چې پوه شو چې نور په هيڅ ډول پاتى کيدونکى ندى نو د يوى دسيسى په ترڅ کښې يې له واک نه لاس واخيست او افغانستان يې د شمال ائتلاف په نوم جوړ شوى اتحاد ته چې مشرى يې احمد شاه مسعود کوله وسپاره
پدى ائتلاف کښې د نجيب الله د دور مليشى ، ځينى شيعه تنظيمونه او ځينى مجاهدين شامل وو ، د مجاهدينو زياته برخه له واک نه بيرون پاتى شول همغه وو چې دا نا انډول حالات له واک نه ووتل داخلى جنګونه پيل شول کورونه وران او ليارى غير مصونى شوى ، د کابل ښار چې تر اوسه روغ رمټ پاتى وو لوټى ، لوټى شو ، د مجاهدينو لوړ او اوچت نوم په ملى او بين المللى سطحه راپريوت ، دا سلسله لا تر اوسه روانه ده او خداى پوهيږى چې پاى به يې کله وى
پرون که مجاهد له مجاهد سره په جنګ اخته وو نن بيا هم د مجاهدينو تر مينځ جنګ دى خو يو لورى ځان ته فکرى مجاهدين او بل لورى ځان ته طالب مجاهدين وائى
دواړه لورى ځانونه غازيان ګڼى او خپل مړى له ځپليو سره ښخوى خو الله پوهيږى چې د دى سترتيا پاى به کله راځى ؟ او کله به افغان اولس له دغو فتنو نه چې زمونږ ناپوه ، مغرور او خپل سرى مشران يې مخ په وړاندى بيائى او د اسلام او افغانستان دښمنان يې شروع کوى او پکې ورته وهى نجات مومى ؟
هغه څه چې اوس پرى هر بافکره ، او هوښيار مسلمان افغان پوهيږى هغه دا دى چې روان جنګونه مساله نشى حل کولى ، او د دى جنګونو پاى د يو

## اندونیزیا

اهمیت یی :

د شمیر له مخی د نړۍ تر ټولو لوی اسلامي دولت دی ، وروسته له چین ، هندوستان ، روسی او امریکا څخه پنځم ډیر نفوس لرونکی هیواد دی چې له ( ۱۲۰ ) میلیونو څخه زیات خلک پکې اوسیږی او د نړۍ د ټولو مسلمانانو له لسمی برخی څخه زیات اټکل شوی دی.

د دوه لویو وچو اسیا او استرلیا په مینځ کبد بحر هند او بحرالکاهل په غاړو پروت ۷۳۵۸۶۵ میلو مربعو مساحت لرونکی له ( ۱۳۰۰۰ ) جزیرو څخه چې ( ۶۰۰۰ ) جزیری یې اوسیدونکی لری ، جوړ شوی هیواد دی چې کمونستی هیوادونه هر یو کمبودیا ، ویتنام ، او لاوس او د کمونیزم له خطر سره مخ هیوادونه هر یو مالیزیا او فطانی ورسره شریکی پولی لری.

اوسنی اهمیت یې لدی کبله هم زیات دی چې د اسلام مخالف قوتونه هڅه کوی چې اسلام له مینځه یوسی ، نو ځکه زه دی برخی ته زیاته پاملرنه کوم.

اسلام منل :

اسلام په لومړنیو وختونو کې مسلمانو تجارانو هلته یووړ، اندونیزیانو اسلام په خوښه او مینی سره ومانه.

د لوی الله جل جلاله په مرسته اسلام د هغه وطن یواځیني لوی دین دی ، که څه هم د وطن لسمه برخه اوسیدونکی عیسایان شوی دی چې کم او زیات ۱۵ میلیونه کیږی.

---

سوچه اسلامی نظام راتګ نه دی ، بلکی د جنګونو په نتیجه کښې به داسی څه مینځ ته راځی چې د کشمکش اوسنی دواړه طرفونه یې اوس په هیڅ شان منلو ته تیار ندی که دا وضع دوام پیدا کړی افغانستان د کفر او بی دینی د یوه لوی خطر سره مخ دی الله دی تری وژغوری آمین یا رب العالمین [ ژباړن ]

اسلام د یو داسې قوت په صفت تبارز وکړ چې اندونیزیائی اولس د استعمارچیانو په خلاف راپورته کوی د اسلام څپانده ولولی هغه وخت لوړ پړاو ته ورسیدی چې په ۱۹۰۶ کال کې ( اسلامي تولنی ) په نوم ډله جوړه او هالینډی استعمارچیان یې مجبور کړل چې د اسلام په خلاف خپل تکتیک بدل او داسې قدمونه یې واخیستل او د فساد هغه تخمونه یې وکرل چې له آزادۍ وروسته ورسره اندونزیائی اولس مخ شو.

خو بیا هم مسلمانانو د ۱۹۴۵ کال د نومبر د میاشتی په ۷ نیتهٔ د ماشومی په نوم اسلامي سیاسي ډله جوړه کړه چې د مسلمانانو د حقوقو لپاره غږ پورته کړی خو وروسته دا ډله د سوکارنو له خوا د خورا زیاتو ستونزو سره مخ شوه.

کمونیزم د مسلمان اولس سره په جګړه کې:

هالینډی ښکیلاک ګرو مستشرق ( ستوک ) ته وظیفه ورکړه چې په اندونیزیا کې د اسلامي قوت د مخنیوی لپاره پروګرام جوړ کړی.

ستوک پیشنهاد وکړ چې ملت پالونکی او کمونستان باید د دین د مقابلې لپاره خپلې هلې ځلې سره ګډې کړی.

ستوک له انجنیر ( ستیفلت ) سره چې په اندونیزیا کې یې د مارکسیزم د خپرونې لپاره کار کاوو پروګرام شریک او هلې ځلې یې سره متحدې کړی.

هالینډی واکمنانو ورته هر اړخیزه اسانتیاوی برابر کړی.

د ۱۹۲۰ کال د مۍ د میاشتې په ۱۳ نیته یې د اندونیزیا د کمونستی ګوند تاسیس اعلان کړ.

که څه هم لدی وړاندی په ۱۹۱۷ کال کې د هالینډ د کمونیزم دیموکراتیک ګوند یوه څانګه په اندونیزیا کې پرانستل شوی وه او اندونیزیائی کمونستانو اندونیزیا د هالینډ یوه برخه ګڼله.

د ۱۹۲۰ کال د دسمبر د میاشتې په ۲۴ نیته د اندونیزیا د کمونستی ګوند د نړیوال کمونیزم کومنترن غړی وګرځید او له ۱۹۲۶ کال څخه اندونیزیائی وفدونو د روسی سفرونه پیل کړل د ۱۹۴۵ کال د اګست په

۱۷ نیټه اندونیزیا خپلواکه او سوکارنو یې لومړنی جمهور رئیس وټاکل شو د همدې کال د اکتوبر په لومړۍ نیټه سوکارنو د ستالین په نوم د کمونیزم د کامیابی نمانځلو په مناسبت د خوشحالۍ پیغام ولیږه چې پکې یې ویلي وو:

مونږ ځکه شوروي اتحاد ستایو چې شورویان د عدالت ، نړیوالۍ سولې او انسانیت لپاره مبارزه کوي

سوکارنو پوره شل کاله داسې واکمنی وکړه چې د اسلام پرزولو ته یې بډې وهلي د ماشومې ډله یې منحل او کمونستانو ته یې د کار زمینه برابره کړې وه

کمونستان د ده په سیوری کې هومره وړاندې ولاړ چې د انقلاب راوستلو لپاره یې دوه ځلې هڅه وکړه ، یو ځل د ۱۹۴۸ کال د ستمبر په میاشت کې او بل ځل د ۱۹۶۵ کال د ستمبر په میاشت کې هر ځل به سوکارنو په ښکاره ډول د انقلابیانو مخالف خو په پټه به یې د هغوی د ټولو کارونو ملاتړ کاوه

په لومړني پاځون کې کمونستانو ۳۵۰۰۰ کسیزه اردو جوړه او څه د پاسه (۱۵۰۰) علماء ، معلمین ، او د دوی د انقلاب مخالفین یې له تیغه تیر کړل ترڅو هغه وخت چې دوی د (متحدې اندونیزیا د کمونستي جمهوریت ) اعلان وکړی څوک یې د مخالفت توان ونلری خو اندونیزیائي اولس په خورا میړانه د کافرو کمونستانو په خلاف جهاد اعلان او د خدای د نوم د اوچتوالي لپاره په هر کوټ کې ملي پاڅونونه پیل او د اندونیزیا اردو هم د جنرال ناسو غلتون په مشرۍ د کریملین د مزدورانو دور کاروی لپاره میدان ته راودانګل

د ۱۹۵۷ کال د ستمبر په ۸ نیټه د (بالمبانغ) په ښار کې د ۶۲۹ غړو په شمول اسلامي کانفرانس پیل شو د کانفرانس ۳۲۵ غړي مشهور علماء او قومي مشران او ۲۸۴ یې سیاسي مشران او استادان وو

کانفرانس د ستمبر په لس نیټه لاندې پریکړې اعلان کړې

۱ - کمونستان د مسلمانانو واکداران نشی تاکل کیدای .

۲ - اوسنۍ کابینه رنګه او بله داسی کابینه باید جوړه شی چې یو کمونست هم په کې نوی

۳ - کانفرانس لدی کبله خپل ژور خفګان ښکاره کوی چې جمهور رئیس سوکارنو د کمونستانو پناه ځای دی ، او کمونستانو ته یې موقع ورکړی ده چې د حکومت په مهمو کارونو کې پوره لاس ولری .

د ۱۹۶۵ کال دو یم پاځون :

دا ځل کمونستانو ځان پوره تیار کړی وو او اخرنۍ تیاری یې د سوکارنو هغه خبری وی چې له پاڅون څخه یوه ورځ وړاندی نوموړی د جاکارتا په ستودیم کې د کمونستو ځوانانو کلنی کانفرانس ته وکړی .

سورکانو وویل : امن تر هغو نشی راتلای تر څو چې د وینو سیند ونه بهیږی د دی هدف په لور لار خورا ګرانه ده خو مونږ باید رحم او مهربانی بالکل له زړونو څخه وباسو

د دسیسی په شپه یې شپږ تکړه جنرالان ووژل او دوه تری وتښتیدل د اکتوبر په لومړۍ ورځ عسکری کودتاء اعلان او څرګنده شوه چې د چین سفارت د انقلاب او کودتاء په کولو کې رول لری .

خو لوی خدای د دی انقلاب د بشپړ بری د مخنیوی لپاره ټول اولس په یوه خوله راپورته او د هغه سوکارنو د له مینځه تللو غوښتنه یې وکړه چې د کمونیزم د بنسټ ټینګولو په تکل یې د ناساکوم دری توریزه شعار پورته کړی وو دری توری عبارت وو له :

قوم ، دین او کمونیزم

سوکارنو په خورا بی شرمۍ سره اعلان کړی وو : زه د مارکس پیرو یم او پری ویاړم زه په ماتریالیزم دیالتیک ایمان لرم .

نوموړی لدی څخهٔ هم خجالت نه کاوو چې ویې ویل : هغه څوک چې د مینی په لذت نه پوهیږی عشق یې نه وی لیدلی ، او د لوبو او ساعت تیرۍ وخت یې نه وی تیر کړی او نه له ښایسته وو سره مینه او علاقه لری نو دا

ور سړی یا نر ښځی دی ، چې د نروالی نښی پکې نشته او یا انسان شکله جماد دی چې شعور او احساس نلری

لدی وروسته مرکزی لوی مشورتی مجلس د پریکړی په رڼا کې چې د سوکارنو د عمری ریاست پریکړه یې ماته کړه د ۱۹۶۷ کال د فروری د میاشتی په شلمی نیټه سوکارنو د هیواد واکی جنرال سوهار تو ته له دولسم د مارچ څخه د سپارلو اعلان وکړ او پریکړه وشوه.چې کمونستانو ته به په نوی حکومت کې ځای نه ورکول کیږی حکومت به د دری اسلامي ډولو په شمول له اته سیاسي ډلو څخه جوړیږی خو په خورا افسوس سره باید ووایم که سوکارنو کمونستانو ته لار خلاص کړه ننه نی واکمنان عیسائیانو ته لار هواروی او داسی اجرا آت کوی لکه عیسایان چې د کمونستانو په ځای راشی او یا لکه چې همغه وخت په مونږ لازم شوی وو چې له کمونستانو څخه د خلاصون په مقابل کې به عیسایان منو.

اندونیزیا د عیسائی خطر سره مخ ده :

زه نه وایم چې اوسنی واکمنان د عیسائیت لپاره کار کوی خو وایم چې د عیسایانو د فعالیتونو په هکله چپ دی او د مشرانو او واکمنانو چپوالی د برخوالی او ګډون معنا لری.

او که د چپ پاتی کیدلو تر شاه بل تړون وی زه نه یم تری خبر او له څه چې خبر شوی یم دا ګیزه دلیل پری نه لرم خو باید لاندی سپینی خبری ولیکم :

ا : عیسایانو وکولای شو چې په واکمن ټولی کې پوره لاس پیدا کړی د ( ګولکار ) په ډله کې یې په پوره اندازه لاس پیدا او د هغه تنفیذی او تشریعی برخی یې په واک کې راوستلی ،په همدی ډول یې د څلورو ولایتونو په بشپړو ادارو خپل واک مضبوط او د دیموکراتیک ګوند مرکزی کمیټه یې په پوره توګه په خپلو ګوتو کې ونیوه.

ب : د چینایانو په ملتیائی د اندونیزیا اقتصاد تر خپل کنترول لاندی راووست.

ج : سره لدی چې عیسویان د وطن یوازې لسمه برخه تشکیلوی یعنی په (۱۲۰) میلیونو کې پنځلس میلیونه دی خو لاندی څیزونه یې په لاس کې دی.

اته زره کلیسا لری ، دري نیم زره دینی علماء ، اتـه زره دینی مبلغین پنځوس هوائی ډګرونـه او ګڼ شمیر ښوونځی ، روغتونونه او کلینیکونه لری.

د : د ځوانانو د نړیوالی اسلامي ټولني د حساب په اساس دري میلیونه او د اندونیزیائی زده کوونکو د روایت له مخی یې پنځه میلیونه خلک په تیرو دوه کلونو کې عیسایان کړل.

د ولسونو فقر او تنګ لاسی خورا لویه وسله ده چې دوی تری ګټه اخلی او ورسره د اندونیزیائی اولس ناپوهی نوره هم د عیسائیت په خپریدلو کې خورا اغیزمن دی.

راتلونکی اندونیزیا :

په راتلونکی وخت کې دوه لویو خطرونو اندونیزیا ته مخه کړی ده.

یو د کمونیزم خطر دی چې د سرطان د ناروغتیا په شان یې له هری خوا څخه په اندونیزیائی ولس د حملی تیاری نیولی دی.

دویم د عیسائیت خطر دی چې په تیره لنډه موده کښې د باوری منابعو له خولی څخه د پاسه سل میلیونه خلک عیسایان کړی دی.

که څه هم د کمونیزم په مقابل کې د واکمنانو دریځ څرګند دی خو د عیسویت په مقابل کې یې دریځ غوڅ ندی.

بلکه د عیسویت په مقابل کې یې چپ پاتی کیدل د دی ښکارندوی دی چې واکمن ټولی باید خپل دریځ بدل کړی ، ځکه په دوه کلونو کې د دری میلیونو مسلمانانو عیسویان کیدل داسی پیښه ده چې د اسلام په ټول تاریخ کې ساری نه لری مونږ نه وایو چې د اشخاصو او یا د ولسونو هلی ځلی به د عیسویت مخه ونیولی شي بلکه وایو چې حکومتونه باید پاملرنه وکړی او همدا ډول د ټولی اسلامي نړۍ حکومتونه او لسونه او خیریه اداری له مسلمانانو سره لاندی مرسته وکړی.

۱ : له اندونیزیائی اولس سره د مسکینتوب د ورکولو په تکل باید کومک وکړی تر څو مسلمانی کورنۍ د عیسویانو د څو لپو وریجو په بدل کې عیسویان نشی
پخوا می هم ویلی وو چې د ځینو اسلامي هیوادونو د مالدارو خلکو هغه زوړ خوراک چې غورزوی يې د اندونیزیائی اولس لوږه مړولی شي.
۲ : معنوی او ادبی همکاری باید ورسره وشی.
۳ : باید د اندونیزیائی اولس د راویښیدلو لپاره هلی ځلی وشی چې د کمونیزم په شان د عیسویت مقابلی ته هم ملا وتړی
په اندونیزیا کې اسلامي پاڅون به په فطانی ، اندلس او فلسطین کې هم اسلامي پاڅونونه ګړندی کړی
والله غالب علی امره ولکن اکثر الناس لایعلمون

## سوریه

د شام یوه برخه ده ، ښکیلاک ګرو په سوریه ، لبنان ، فلسطین او اردن سره وویشله
د اسیا په شمال ختیځه کې پرته ده چې لبنان ، عراق ، اردن ، فلسطین او ترکیه ورسره شریکی پولی لری.
( ۷ ) میلیونه خلک پکې اوسیږی چې ۱۰ ٪ يې د نصیری فرقی منونکی دی دوی په غرونو کې اوسیدل ، په سوریه کې د اسلام په ضد توطئی په نتیجه کې ښارونو ته راښکته کړای شول.
اسلام په لومړیو شیبو کې هلته تللی او د راشده خلافت وروسته د لومړنی اسلامي دولت مرکز وو.
د تتاریانو ، او صلیبیانو په خلاف يې میړانه ښوولی ، که څه هم نصیری ډلی تل له مسلمانانو سره خیانت کړی او له دښمنانو سره یو لاس شوی ده .
د ۱۹۴۸ م کال په جنګ کې لدې خاوری څخه د ډاکټر مصطفی السباعی په مشری بې له سرکاری اردو څخه د مجاهدینو یو لوی لښکر د یهودیانو په ضد جنګ ته ورداخل شو.

د اوسنۍ سورئي په باره کې لاندې عنوانونه څیړم :
د بعث ګوند - نصیري فرقه - د اسلام په خلاف جنګونه

## د بعث ګوند

تأسیس یې :
څه د پاسه ۴۰ کاله پخوا د دوه تنو پواسطه جوړ شوی چې یو یې ( زکی الارسوزی ) نومی نصیری او بل یې میشل عفلق نومی یونانی عیسوی وو له لومړۍ ورځی څخه ورسره غیر اسلامي فرقی یو ځای شوی.
لکه ( نصیریه فرقه ، د سوری عیسویان ، د روز فرقه ، اسماعلیان ، او له اهل سنتو څخه یوازې څو په ګوته شمیر پریوتی خلک ( صلاح بیطار ) او ( امین حافظ ) ورسره ملګری شو.
دا حزب د فرانسوی ښکیلاک په غیږ کې راپورته او د همدی ښکیلاک په واسطه یې نمو او پراخوالی وموند او د همدوی په واسطه پکې د اسلام په ضد روحیه وپالل شوه.
دا نه پټیدونکی خبره ده چې د سورئی عیسویان وو چې لومړی ځل یې د اسلامي تولنی په ځای د عربی تولنی غږ پورته کړ.
حزب د هغو عسکری کودتاګانو په سیور کې پرمختګ وکړ چې د ۱۹۴۹ کال د می له ( ۳۰ ) نیټی څخه د امریکا جاسوسی شبکی د حسنی الزعیم په مشری په عربی نړۍ کې د نظامی کودتاګانو طراح کیرمت روزولت په نقشه او پلان سره پلی کړی وی.
د بعث ګوند سابقه دار غړی استاذ جلال السید د ۱۹۶۳ کال د مارچ میاشتی اتمی کودتا په هکله وائی :
د اتمی کودتاء مشرانو داسی څه وکړل چې خلکو د انقلاب د ښکاره بنی د لیدلو له کبله حق درلوده چې ووائی :
دا انقلاب د یوی کوچنی ډلی له خوا د اکثریت په ضد دی ، دا د ناپوهی انقلاب دی د علم په مقابل کې ځکه ناپوه حزبیان لوړ او پوهان پریوتل.

دا انقلاب د آزادۍ خپل سرۍ او بیا حیائی دی د نیکو اخلاقو او عربی ځوانمردۍ په مقابل کې،دا انقلاب د کفر ، او بی دینۍ دی د دین او معنوی پاکوالی په مقابل کې دا انقلاب د مادی ګټو دي د لوړو معنوی صفاتو او انسانی اخلاقو په مقابل کېاو بالاخره دا مارکسیزم دی چې په قومیت او عربی اوچتو دودونو بریمن شو.

د ۱۹۶۳ کال د مارچ د میاشتی د کودتاء په نتیجه کې حزب له نوی بدلون سره مخ او په دننه کې په ډلو وویشل شو ، په حزب کې د نصیری فرقی خپل سری ښکاره شو چې بالاخره ( میشل عفلق ) د حزب په ملی او محلی شوراګانو کې اعلان وکړ چې حزب د نصیری فرقی په خاص ډول د نظامیانو په واک کې پریوتی دی.

د لومړنی تصفیی په نتیجه کې له ( نصیری فرقی ) څخه صلاح جدید ، له ( دروزو) څخه سلیم حاطوم ( اسماعیلیانو ) څخه عبدالکریم الجندی او په آخر کې( نصیری ) فرقی ته منسوب حافظ الاسد میدن ته راووتل او میشل عفلق عراق ته وتښتید.

دی تولی د جولان جنګ پیل او په خپلو لاسونو یې دا حساسی نقطی اسرائیلو ته وسپارلی د ( سلیم حاطوم او بدر جمعه ) اندیوالانو هڅه وکړه چې د جولان له ماتی څخه په ګټی اخیستلو سره واک تر لاسه کړی خو بندیان او بیا اعدام شوه.

د حزب داخلی کشمکش دوام وکړ لومړی ( دروز ) وریسی د عبدالکریم الجندی په مشرۍ اسماعیلیان په وژلو لری کړای شول.

د حافظ الاسد په واسطه د دویمی تصفیی په نتیجه کښیاتی ټول اهل سنت او دروز له حزب څخه لری او ۱۶ / ۱۱ / ۱۹۷۰ نیټه حزب په بشپړ ډول د ( نصیری فرقی ) په واک کې وغورځید.

که د سوری تاریخ ته د امریکا د استخباراتی شبکی په واسطه د حسنی الزعیم له کودتاء څخه د نصیری فرقی تر واکمنۍ پوری وکتل شي نو په

ډاګه به شي چې د دی ټولو پیښو یواځیني هدف دا وو چې اسرائیل باید پیاوړی او امنیت یې خوندی شي
حسنی الزعیم خپلو امریکائی بادارانو ته څرګنده کړی وه چې داسی پروګرام عملی کوی چې په منطقه کې د عربو او اسرائیلو تر مینځ شخړه ورکه کړی نو ځکه یې د ۱۹۶۸ کال له ماتی وروسته له اسرائیلو سره د ګډی پریکړی پیشنهاد وړاندی کړ
او پدی ډول د ټولو نظامی کودتاګانو چې د حسنی الزعیم د کودتا پسی د امریکایانو په ملاتړ مینځ ته راغلی هدف دا وو چې د سوری اردو باید تس نس او له مخلصو او پاکو جنرالانو او صاحب منصبانو څخه خالی شي
د دی عسکرو کودتاګانو په نتیجه کې د سوری د اردو پاک خلک له وظیفی تر د بندی تبعید او یا اعدام شول
دا ځکه چې امریکایان پوهیدل چې د سوری اردو د یوی لوئی او ماتی نه خوړونکی کلا مثال لری چې د صلیبی او صیهونی استعمار د ټولو دسیسو مقابله کولای شي او د سوری اولس هغه ځانګړی اولس دی چې ترکانو او فرانسویانو ونشو کولای چې غلامان یې کړی
د حزب اصول :
حزب د یو والی ، آزادۍ او کمونیزم شعار پورته کړ ، د سیکولیریزم په اصولو ولاړ او له دین څخه خورا لری دی
لیدل کیږی چې حزب هغه وخت مینځ ته راغی چې امریکایانو د فرانسوی او انګریزی استعمار په ځای په منطقه کې استعماری منګولی خښی ، عسکری کودتاګانی پیل د مشرانو جوړولو پروګرام شروع ، درواغجن شعارونه پورته د اسلامي ډلو ځپل او یا په لنډو ټکو هغه وخت مینځ ته راغی چې په اسلامي منطقه کې نوی ښکیلاک قدم کیښود
د څه وخت لپاره د بعث ګوند او د جمال عبدالناصر ترمینځ ګډی همکارۍ مینځ ته راغلی چې د سوری او مصر د یووالی په ترون کې میشل عفلق د جمهور رئیس د سیاسي مشاور په توګه وټاکل شو

میشل عفلق وروسته له تبعید څخه په عراق کې هم د بعث ګوند تأسیس کړ خو د عراقي او سوریائي بعث ګوندونو تر مینځ کشمکش پیل او پیاوړی شو.

**نننۍ سوریا او د بعث ګوند**

د حزب د جوړښت نه څه د پاسه ۳۰ کاله وروسته چې ۲۵ کلنه واکمني يې وکړه د ( حزب د ساتنې ) په نوم قانون جوړ شوی چې وائي:

حزب د ټولنې او دولت مخکښ ځواک دی

د حزب شته منی د ملت شته منی ګڼل کیږي.

هغه څوک باید جزا وویني چې د حزب د غړیتوب تر څنګ د بل سیاسي ګوند غړیتوب ولري او هغه باید اعدام شي چې د تنظیم په غړي تجاوز وکړي او یا پرې ثابته شي چې له پردیو سره اړیکې لري.

او پدې ډول يې د قانون په توره د حزب ژغورنې ته ملا وتړله، چې د نړۍ پر مخ به یواځیني حزب وي چې ځان پدې ډول ساتي.

له دا وړ اجراآتو څخه په ډاګه څرګندیږي چې حزب له خورا ډار سره مخ او په داخل کې له زیاتو ستونزو سره لاس او ګریوان دی چې باید د قانون په توره يې ملاتړ وشي او بالاخره د سوري واکمن ټولي فرمان صادر او د سوري ملي شورا هم تائید کړ چې باید هغه څوک اعدام شي چې د اخوان المسلمین تنظیم غړیتوب پرې ثابت شي.

ترڅو پدې توګه هغه خلک له مینځه یوسي چې په اسلامي سوریه کې د اسلام د دښمنانو سره مقاومت او مقابله کولای شي.

عیسائیت اوس هم د نصیري فرقې ملاتړی دی ځینې چې ویني چې میشل عفلق عراق ته وتښتید نو فکر کوي چې عیسائیت به د نصیري فرقې له ملاتړ څخه لاس اخیستی وي خو چې د سوري د واک لوړ ټولي ته وکتل شي نو وبه لیدل شي چې اوس هم:

جارج صدقي، جوزف صباغ، د جمهور رئیس مشاورین ( جارج جبور، اسکندر لوقا او انطون مقدسي د نشراتو متخصص ( جبران کوریه ) او

نظامی متخصص ( الیاس بیرکور ) او نور په مهمو او اساسی ځایونو کې کار کوی

په ډاګه کیږی چې نصرانیت اوس هم د نصیری فرقی ملاتړی او په خپل پخوانی اصل یې عمل کړی دی چې :

که په یوه ټولنه کې بشپړه واکمنی لاس ته نه درځی نو صبر وکړه او ځان په نوو رنګونو رنګ کړه .

## نصیریه فرقه

مینځ ته راتګ یې :

حسن عسک ری په ۲۶۰ هجری کال وفات او څوک تری پاتی نشو خو محمد بن نصیر غږ وکړ چې/حسن عسکری د محمد په نوم زوی لری چې د پنځه کلنۍ په عمر کې د پلار په سیوری کې پټ او له پلار څخه وروسته امامت ده ته نقل شو .

تر اوسه ندی ښکاره شوی او دا همغه ( منتظر مهدی ) دی

پدی برخه کې یې له امامیه شیعه ګانو سره جلا والی راغی ځکه هغوی وائی چې له حسن عسکری وروسته هغه سړی امام شو چې د ده د کور په مخکې یې غوړی پلورل

د نصیر زوی له خلکو وتښتید او نصیریه فرقه یې جوړه کړه .

اصول یې : اصول یې له سبیه ، مجوسو خطابیه ، نصرانیت او اثنا عشریه شیعه وُ څخه راټول کړل چې عبارت دی له :

ا - حضرت علی کرم الله وجهه د اسمانونو او ځمکی خدای دی چې بریښنائی غږ او تندر یې قمچینه ده

ب - روح تناسخ کوی

ج - د مجوسیانو او نصاراوو اخترونه یې خپل کړه .

د - ښځه مکلفه نده لمونځ هم د نورو مسلمانانو په شان نه کوی بلکه هغه حضرت علی ته توجه لمونځ دی چې دوی یې ( د اسمانونو او ځمکی بښونکی او مهربان خدای ګنی

امام ابن تیمیه رحمه" الله علیه د دوی په هکله وائي :

نصیریه فرقه او دوی ته ورته ( باطنی قرامطه ) له یهودیانو او نصاراوو څخه زیات کافران او له زیاتو مشرکانو څخه یې هم کفر پورته دی.

د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم پیروانو ته یې تاوان له اسلام سره د جنګیدونکو کافرانو لکه تتاریانو ، انګریزانو او نورو څخه زیات دی ځکه دوی ځانونه د مسلمانانو په نوم ښکاره کوی د اهل بیتو سره مینه او عاطفه څرګندوی خو په حقیقت کې نه په خدای ایمان لری ، نه یې په رسول ، نه یې په کتاب ، نه په جنت ، دوزخ او نه په هیڅ پیغمبر چې له محمد صلی الله علیه وسلم څخه پخوا تیر شوی

د دی فرقی پخوانی او اوسنی خیانتونه

د دوی خیانتونه د اسلام او عربیت په خلاف له هغی ورځی څخه پیل شوی دی چې تتاریانو ته یې لار هواره کړه چې په اسلام حمله وکړی او د بغداد عباسی خلافت له مینځه یوسی.

د شام او مصر په ضد د صلیبیانو د حملی لومړنی لښکر وو چې صلیبی فرانسی حمله وکړه او تر ننه یې تیری دوام لری.

نصیریان پرون د تتاریانو او فرانسویانو ملاتړ وو او نن د همدوی په دسیسو یهودو بیت المقدس ونیو او مسلمانان یې تری وشړل.

که پرون د دی فرقی منونکی د تتاریانو او صلیبیانو په اردو کې عسکر وو نن یې په لبنان کې د مسلمانانو په ضد صلیبی مارونیانو وسله اخیستی ده.

له مارونیانو سره ملګرتیا یې د دی پیړۍ له لومړیو ورځو څخه هغه وخت پیل شوی ده چې شام د فرانسوی ښکیلاک په لاس کې وو فرانسویانو دوی ته دولت جوړ ، یو یې ورته د خدای په نوم وټاکه چې ټولو نصیریانو یې عبادت کاوو

دوی یې په اردو کې شامل او بالاخره د فرانسی د ښکیلاک موده د دوی او د مارونانیانو لپاره مهربانی مور د غیږ په شان وه.

نصیری فرقی ته هغه وخت طلائی چانس په لاس ورغی چې یهودی او عیسائی بنکیلاک گرانو له خپلو مسلمانو مزدورانو ، دروزو ، اسماعلیانو کینه لرونکو څخه غوښتنه وکړه چې د عربی قومیت په لور بلنی ته په خاص ډول پاملرنه وکړی.

د بعث گوند د همدی فکر عملی نمونه او یا په بل عبارت د بعث گوند د پورتنیو صفاتو لرونکو خلکو له مجموعی څخه عبارت دی.

واکمنی یې

نصیری فرقی هومره لاس اوږد کړ چې سره لدی چې دوی د ټول ملت ۱۰ ٪ دی د دی فرقی د بعث گوند د ټول ملت واک په لاس کې واخیست.

د ملت هغو پرگنو چې لدوی سره د عقیدی اختلاف لری جلا، جلا ستونزی او کړاوونه ولیدل.

د ملت د غولولو لپاره یې له ( تقیی ) کار واخیست ، او واکمن اعلانوی چې دی مسلمان دی او په عامو غونډو کې د ( اشهد ان لا اله الا الله وان محمداً رسول الله ) کلمه تکراروی خو لوی الله جل جلاله دوی داسی معرفی کوی :

يُخَادِعُونَ اللَّهَ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَمَا يَخْدَعُونَ إِلَّا أَنفُسَهُمْ وَمَا يَشْعُرُونَ()فِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ فَزَادَهُمُ اللَّهُ مَرَضًا وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ بِمَا كَانُوا يَكْذِبُونَ [ د سوره بقره ۹ -۱۰ آیتونه ]

( له خدای او مؤمنانو سره ټگی کوی خو دوی ( عملاً ) ځانونه غولوی او دوی بی شعوره دی ، په زړونو کې یې مرض دی الله پاک د دوی مرض زیات کړ د دوی د درواغو له کبله دوی ته دردناک عذاب دی ).

## د اسلام په خلاف جنگونه

له هغی ورځی چې د بی دینه بعث گوند او کافرو نصیریانو تر مینځ ناپاک یو والی وو تر اوسه چې کافر نصیریان په یوازې ډول بی له کافرو بعثیانو واکمن دی او هلی ځلی کوی چې په سوریه کې اسلام له مینځه یوسي.

مثالونه یې :

۱ } د مروان حدید وژنه : نوموړی د پوهنتون یو خدای ته بلونکی محصل وو ویې نشو زغملی چې د بعث راډیو دا غږ واوری .
په بعث می ایمان راوړی ، دا زما بی شریکه رب دی ، عربی قومیت می داسی رب دی چې دویم یې نشته .
په یوه جومات کې یې سنگر ونیو ، او د هغو عسکرو سره یې په مړانه مقابله وکړه چې جومات یې محاصره کړی وو .
بیا د دو یم ځل لپاره بندی او وزن یې له اتیا کیلو گرامه څخه شپږ دیرش کیلو گرامه ته راکم شو د زهرو ستن یې ورته ووهله د ۱۳۹۶ هجری کال د رجب په ۲۲ نیټه چې له ۱۹۷۶ کال سره سمون خوری د دوشنبې په ورځ شهید شو .
۲ } په همدی کال کې یې مسلمانه بلونکی‌غفران انیس نومی پیغله هم ووژله او مړی یې د هوائی ډگر په سرک واچاوه ، له طبی تحقیق څخه معلومه شوه چې لومړی له وژنی څخه یې هغه بی پته کړی هم وه او پدی شان یې ( لیلی ) هم ووژله .
۳ } د حربی پوهنځی غمژنه صحنه یې جوړه کړه کله چې ابراهیم یوسف نومی بعثی زده کوونکو څو نصیری زده کوونکی ووژل .
خو د وژنی تهمت یې په اسلامي ډلی واړاوه ، چې په نتیجه کې یې په زرگونو مسلمان زده کوونکی بندی او اتلس یې تری اعدام کړل .
۴ } پیښې یو د بل پسی گړندۍ شوی چې بالاخره مسلمان ځوانان هم مجبور شول چې وسلی ته لاس کړی او د دولت د ( کوماندو ، د دفاع خاصو قواوو ) په خلاف یې هغوشان جگړی وکړی چې د اسلام د لومړنیو جگړو یاد یې تازه او د مسلمانانو په ملاتړ یې د اسمان ملایکی رانښکته او د الله جل جلاله او د هغه د رسول څخه د منکرو کافرانو په مقابل کې وجنگیدلی .
۵ } د تعلیم په میدان کې یې ۵۰۰ مسلمان نارینه او ښځینه ښوونکی چې په اسلامي غیرت یې شهرت درلود د تدریس له شعبو څخه اداری ځانگو ته نقل کړل .

۶ } په اردو کې: لمونځ کول یې بند او د اسلامي فکر لرونکی خلک یې تصفیه او نصیری کافران یې مشران وټاکل ، په دین ملنډی یې هغه سرحد ته ورسیدی چې د لمانځه په مساله یې شراب توی او له لمونځ کوونکی یې کالی وښکل ، دا ور کارونه یې د علی الزیر نومی جګتورن او حورانی نومی لومړی بریدمن سره وکړه.

۷ } په اقتصادي اړخ کې : د سوریائی لیری ارزښت د خرابو اقتصادي پروګرامونو له مخی راښکته او د پټرولو عایدات بی لدی چې د دولت بودیجی ته ولاړ شي د واکمنانو جیبونو ته ولاړل.

۸ } په سیاسي ډګر کې د ګولان د لوړو څوکو خیانت تر اوسه له چاندی هیر شوی چې وزیر دفاع پری د جمهوری ریاست مقام ته ورسید .

د قینطره د نیول کیدو اعلان ۲۱ ساعته وړاندی لدی چې اسرائیلی قواوی هلته ورسیږی هم له چا نه پټ ندی او دا هم له چا څخه پټه نده چې همدا اوس دوی د هر اړخیزی سولی غږ کوی او پدی توګه د ( هیڅ نه منم ) تر شعار لاندی خپلو شومو اهدافو ته پوښ ورکوی.

راتلونکی سوریه :

باور لرم : وروسته لدی چې د سوری مسلمان اولس د بعث ګوند خیانتونه او درواغ وپیژندل د نصیریانو پرله پسی دسیسی یې درک کړی.

نو د دوي د بواح کفر په مقابل کې یې د جهاد سمه لار غوره کړه باور لرم چې الله تعالی به ورسره لاس وکړي ، الله پاک حق څرګندوی که څه هم کافران ناخوښه وی

## مصر

اهمیت او خطر : مصر هر اړخیز مهم وطن دی.... نو څکه ورته د هر لوری خطرونه متوجه دی که موقعیت ته یې ځیر شو نو وبه وینو چې مصر د دری لویو وچو اروپا ، افریقا او اسیاء په مینځ کې پروت دی شمال لورته د اروپا سره اوږده پوله لری چې یوازې سپینه بحیره یې په مینځ کې پرده ده ختیځ لور ته تر آسیا اوږدوالی لری ، څکه د سیناء وچه دښته د اسیاء برخه ده ،

له عربي وچې څخه د عقبې خليج او سرې بحيرې جلاء کړې دی ، جنوب او غرب لورې ته د هغې تورې افريقا پورې تړلې دی چې د ګڼو خطرونو ورته مخه ده لدې سره سره د اروپا له لورې اسياء او افريقاء ته تجارتې لار هم د مصر په واک کې ده ځکه د سويس کانال په مصر پورې تړلې ، د تجارت اهميت يې لدې کبله هم زيات دی چې د شمال له لورې په سپينې بحيرې او په ختيځه برخه کې په سرې بحيرې پورې تړلې دی موسم يې پداسې ډول دی چې تل پکې لمر وی ، هوا يې د يخنې او ګرمې په مينځ کې معتدله ده چې په شمالې برخو کې يې اورې ، او په ختيځ او جنوبې برخو کې يې ژمې هميش په يو ډول وی.

شته منې يې : که لوی الله جل جلاله يې واکمنانو ته اخلاص ورکړې نو د نړۍ له ټولو ښه د کرهنې ځمکه لرې ، ځکه خاوره يې ډېره او اوبه يې بشپړې دی ( د نيل رود ) چې د نړۍ تر ټولو نوميالې سيند دی دلته بهيږې.

دا سيند له اوبو سره خړه لرې چې ځمکه د کرهنې لپاره وړ او مناسب ګرځوی تاريخ څيړونکې وائې چې د رومانيانو د واکمنۍ په ورځو کې د مصر ۹۵ ٪ ځمکه کرل کيده مصر يوازې يو زراعتې هيواد نه بلکه د صنعتې کيدلو امکانات يې برابر دی ځکه د ټولو موادو او په خاص ډول د معادنو خام مواد هلته په ځانګړې ډول د سيناء په دښته کې په بشپړ ډول موجود دی.

د کار ګر قيمت هم د نړۍ د هر ګوټ په نسبت دلته ارزان او موسم هم د ټولو صنعتونو د ودې لپاره مناسب دی.

راس المال يې : ډير اسان کار دې خو که هغه مصرف لاسونه وتړل شي چې د اولس خولې څښې ، خپلو جيبونو ته يې اچوی او بيا يې د جوارې په ميزونو او د ګډېدونکو فاحشو ښځو په قدمونو کې شيندی.

اولس يې لاندې ځانګړتياوې لرې.

۱ - که نيک لارښود وی په اسلام پرمخ ورپريوزې ، د نورو اولسونو په شان په بديو او لويو ګناهو تينګار نه کوی.

أَخْرِجُوا آلَ لُوطٍ مِنْ قَرْيَتِكُمْ إِنَّهُمْ أُنَاسٌ يَتَطَهَّرُونَ ( د لوط کورنۍ له خپل کلي وشړۍ ځکه دوی ځانونه ډیر پاکان ګڼي )

۲ - که په واکمنانو کې یې څه ښه والی ولید نو ډیر ژر ورپسی ټینګه ملا تړی او که پری بدګومانه شوه او ټګی یې پکې ولیده نو په خورا تریو تندی تری مخ اړوی او هغه درنه څپیړه هم لری چې د ظالم ځوابه ورکوی او د بی وسی کړی شوی اولس د هوښیارتیا څرګندونه کوي

۳ - که قناعت یې تر لاسه شي نو ډیر ژر د مال او سر قربانۍ ته اماده کیږي چې پدی لار کې د اوږده صبر حوصله هم ورسره شته ، مصری عسکر د نړۍ غوره عسکر وي

په دویمه نړیواله جګړه کې ویل کیده چې یو الماني عسکر د ۸ انګریزو عسکرو سره برابر دی خو مصری عسکر په الماني عسکر دوه چنده غوره والی لري

د دی خبری معنا دا ده چې یو مصری عسکر د ۱۶ انګریزی عسکرو سره سمون خوری د سویس کانال او فلسطین جنګونو په دوران کې د مصر د مسلمانو ځوانانو جهاد ثابته کړه چې د دوی یو له پنځو سو او سلو سره ټکر کولای شي

۴ - اوسیدونکی یې له ۴۰ میلیونو پورته دی او کیدای شي چې نور هم زیات شي که څه هم د ولادت د مخنیوی لپاره مختلف وزارتونه او دفترونه هلی ځلي کوی خو مصری اولس د اولادونو زیاتوالی ته ترجیح ورکړی ده

که د زیاتو اولادونو پیدایښت ته خلک تشویق شی او په ځنګ کې یې څه مالي پراخوالی د اسلامي اخلاقو او تربیي ورکولو سره هم برابر شي نو مصري ځوانان به د ځوانۍ په لومړیو شیبو کې ودونو ته ترجیح ورکړی او د مصري اولس نفوس به چې لاندې فایدی لري خورا زیات شی

پدی وسیله اولسونه کولای شي چې پد جنګونو کې په میړانه برخه واخلی او ښکاره ده چې مصر ته د هری لوري د جنګ توپونه چو شوی دي

د کارګر د زیاتوالی له کبله د تولید زیاتوالی اقتصادي بنسټ پیاوړی کوی دا پخه خبره ده چې د نفوس زیاتوالی په اسلامي نړۍ بالخصوص په مصر کې د قوت او زیات تولید نښه ګڼل کیږی.

د مصر د نفوس زیاتوالی دښمنان ډارولی دی او بادل شتمز خپل ډار داسی ښکاره کوی:

وروسته له دری سوو کلونو څخه به د مصر نفوس ۵۰۰ میلیونه او له ۴۲۵ کلونو وروسته به دوه میلارده وی، یعنی په مصر کې به دومره خلک وی څومره چې نن ټول د ځمکی په مخ ژوند کوی) او ۹۶۸ کاله یعنی څه کم زر کاله وروسته به یې نفوس ۹۷۳ میلارده ته ورسیږی یعنی د مصر نفوس به هومره زیات شی چې د ټولی ځمکی ګټه به د دوی لپاره بس نه بلکه د نورو کرو استعمال ته به اړ وی.

د نفوسو د زیاتوالی د مخنیوی لپاره د اقتصادي منابعو د کموالی خبری د علم په رڼا کې د هغو دلیلونو له مخی چې وړاندی مو ورته اشاره وکړه دروواغ دی، خو غم دا دی چې طبیعی منابع یا په کار ندی اچول شي او یا د څو ګوته په شمار خلکو جیبونو ته غورځیږی.

د دی پورته معلوماتو له کبله روښانه ده چې مصر ارزښتناکه خاوره ده نو ځکه د نړۍ د هر ښکیلاک ګر قوت له خوا ورته خطر متوجه دی.

مونږ وینو چې دا خطرونه له پخوانیو فرعونیانو څخه پیل او تر نورو فرعونیانو پوری چې د هکسوس، رومانیان، فرانسویان، انګریزان او یهودو ښکیلاک ګران پکې شامل دی دوام لری.

خو تاریخ ښودلی ده چې مصر تل د تیری کوونکو هدیره ده.

عربی متل وائی: مصر د ځمکی په مخ د الله جل جلاله د غشو لیندۍ ده.

ټول غشی تری د پخی عقیدی دین او اخلاقو سره د مینی په رنګ خړوب او زی.

ټول خلک پدی پوهیږی (که څه هم واکمن ټولی متوجه نه دی) چې هر چا چې د مصری اولس سره ټګی کړی ده دوام یې ندی میندلی که څه هم د څه

وخت لپاره پدې اولس ظلم شوی دی خو دوام يې ندی پيدا کړی ، فسق او کفر که څه هم اوږده زمانه وخت تير کړی دی خو اولس تری ځان لری ساتلی دی.

د پخوانيو او اوسنيو فرعونيانو د پخوانيو او اوسنيو ښکيلاک ګرانو سرنوشت د پند اخيستونکو لپاره لوی پند او درس دی

پخوانی او اوسنی تاريخ يې :

د مصری اولس او تمدن تاريخ د دوی د فرعونی نيکونو په حساب ۳۰۰۰ کلنه سابقه لری په فرعونيت فخر کول د جاهليت هغه زوړ غږ دی چې د ښکيلاک ګرو له خوا له لومړی نړيوالی جګړی وروسته راپورته او د جاهليت په لوری د خلکو د راښکلو هدف لری.

مونږ ورته ناپوهی وايو ، هومره زياته شوی وه چې د فرعونيانو په لور بلنه به يې کوله او په خپله فرعونيانو به هم په کبر او غرور ويل :

أَنَا رَبُّكُمْ الْأَعْلَى ( زه ستاسی لوی رب يم ).

ما علمت لكم من اله غيرى ( بی له ما زه ستاسی بل الله نه پيژنم.

مَا أُرِيكُمْ إِلَّا مَا أَرَى وَمَا أَهْدِيكُمْ إِلَّا سَبِيلَ الرَّشَادِ ( زه بی زما له خبری بل څه ستاسی په ګټه نه وينم ، او زه بی له روغی لاري بل څه تاسي ته نه ښايم )

همدا جاهليت اوس هم کله ، کله ښکاری چې يوه فرعون وويل : ما په تاسو کې آزادی پيدا او کرامت مې دروباښه ).

مونږ وايو چې دا ناتوانه مخلوق پيدا کول کوی نو د نړۍ واکمن خالق ته يې څه پريښوول ؟

د دی اولس د رښتينی خوښۍ ورځ له اسلامي فتحی څخه پيل شوی ده کله چې د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه لوی قوماندان عمرو بن العاص رضی الله عنه د مصر په لور خپلی لښکری وروخوځولی نو د مصر د خلکو زړونه يې د قرآن کريم په برکت پخوا د توری له زور څخه فتحه او مصری اولس په خپله خوښه مسلمان شو.

ځکه چې دوی د رومانيائی واکمنانو او د هغوی د تيری او ظلم او د اسلامي واکمنانو او د دوی د انصاف او عدالت په مينځ کې خورا زيات

فرق ولید ، نو د دغه عدل انصاف او امن ژوند د خپلولو په هیله به زیات عیسویان د رومانیائی واکمنانو څخه چې په دین کې ورسره یو وه مسلمانو واکمنانو ته چې دین یې هم ترې جلا وو راتښتیدل.

ځینې مصری قبطیان په خپل دین پاتې او هیڅ پرې زور رانه وړ چې خپل دین پریږدی او هغه حقوق یې تر لاسه کړل چې تر اوسه په هیڅ تولنه کې اقلیت ته ندی تر لاسه شوی.

دا کیسه به هیڅکله له چا څخه هیره نشی چې د مصر له فتحې وروسته یو قبطی ځوان حضرت عمر رضی الله عنه ته شکایت وکړ چې ما د عمرو بن العاص رضی الله عنه د زوی سره مسابقه کوله ، چې ما ترې مسابقه وګټله ویې وهلم.

حضرت عمر رضی الله عنه د مصر والی عمرو بن العاص رضی الله عنه او زوی یې دواړه راوغوښتل او د لوئی ډلی په وړاندې یې ورته : ای قبطی ! اوس لدې اشراف زاده څخه بدل واخله او بیا یې خپل والی عمرو بن العاص ته مخ راواړاوه او ویې ویل :

که بل څل دی زوی داسی کار وکړ نو زه به تا په دورو کړم څکه دا وړ کار ستاسې زوی د پلار د لوی نوم او واکمنی په ډاډ کوی.

مصری اولس دا عملی کیسه نده هیره کړې او نه یې د قرآن کریم دا مبارک آیات هیر کړې دی چې فرمایی :

لَا يَنْهَاكُمُ اللَّهُ عَنِ الَّذِينَ لَمْ يُقَاتِلُوكُمْ فِي الدِّينِ وَلَمْ يُخْرِجُوكُمْ مِنْ دِيَارِكُمْ أَنْ تَبَرُّوهُمْ وَتُقْسِطُوا إِلَيْهِمْ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِينَ [د المتحنه : ٨ ]

( الله پاکی تاسی نه منع کوی چې له هغو خلکو سره ښیګڼه او انصاف وکړه چې له تاسې سره د دین په برخه کې ندی جنګیدلی او نه یې تاسی له خپلو کورونو څخه شړلی یاست بی له شکه چې الله پاک انصاف کوونکی خوښوی )

او هغه یې هم په یاد پاتې ده چې د اسلام لښکرو د یرموک له جګړې څخه مخکې ونشو کړای چې د ( حمص ) له خلکو سره د تړون مطابق د هرقل په

مقابل کې لاس وکړی نو خراج یې بیرته ورولیږه او ورته یې وویل : مونږ ستاسی کومک ته درونه رسیدو خراج مو درواخلی. تاسی آزاد ئي )
د حمص خلکو وویل : ستاسی واکمنی او انصاف مونږ د هغه ظلم او تیری څخه چې پخوا په مونږ واکمن وو ډیر خوښوو ، او ستاسی د والی په ملګرتیا به د هرقل لښکری له خپل ښار څخه وشړو.
مصری اولس له مختلفو تیریو سره پخوا او اوس مخ شوی دی.
تر څو یې شتمنی او هواء لاس ته راوړی او هم یې دین او عقیده له مینځه یوسی
څو پیړۍ په پرله پسی ډول د صلیبیانو د حملو لاندی وو.
چې مصریانو د قربانۍ او فداکارۍ لوړی نمونمی څرګندی او په منصوره کې یې صلیبیانو ته ماتی ورکړه
بالآخره یې د صلاح الدین ایوبی تر مشرۍ لاندی صلیبیانو ته په حطین کې داسی ماتی ورکړه چې د صلیبی جنګونو لړۍ یې ورختمه کړه.
خو مصر بیا هم په امن پاتی نشو د دښمنانو له نورو دسیسو سره مخ شو.
او لدی پخوا یې په ( عین جالوت ) کې د تتاریانو استعمار هم پای ته رسولی او د جنګ په ډګر کې یې هغه زړورتوب او توریالی توب ښوولی وو چې نن هم د تاریخ زرینی کیسی دی.
لدې وروسته یې د فرانسوی استعمار سره په تش لاس مقابله چې نه ورسره اسلامي خلافت لاس وکړ او نه بل اسلامي هیواد او بیا یې د پر مخ تللی انګریزی ښکیلاک سره مقابله د دی پخه څرګندونه ده چې مصری اولس له دین سره خورا زیاته مینه لری او د اسلامي علماوو هر امر ته لاس په نامه ولاړ دي
د فرانسویانو په مقابل کې څپانده پاڅون ، او د انګریزی یرغل په وړاندې کلک دریدل په رشید او کفر په دورو کې یې ماتی ورکول ژوندی مثالونه دی
که د همغه وخت واکمنانو خیانت نه وای کړی او د مصری اردو ځینو صاحب منصبانو ناځوانی نه وای کړی نو مسلمان قوماندان احمد عرابی

کولای شو چې د انګریزانو مخه په بشپړ ډول ونیسي او پرې نږدي چې انګریزان خپل ناولي قدمونه د مصر په پاکه خاوره کیږدي.

انګریزي ښکیلاک ګران په (۱۸۸۲) کال کې مصر ته راغلل یوازې یو کال وروسته یې د اسلامي قانون د تطبیق مخه ونیوه او هڅه یې وکړه چې عربي ژبه په غربي ژبه بدله او لوړ او اوچت اخلاق یې په غربي اخلاقو تبدیل کړي خو ټولې هلې ځلې یې ناکامې شوې.

که څه هم د دوی مزدورانو لدوی وروسته همدا لار ونیوه چې وروسته به یې وڅیړم.

انګریزي ښکیلاک وروسته له (۷۴) کلونو څخه په (۱۹۵۶) کال کې پای ته ورسید.

عسکري کودتا او د یهودیانو او عیسویانو ګډ موقف

وروسته لدې چې د امریکا د پټې جاسوسي مرکزي څانګې لیکنه وکړه او هغه اسناد رامینځ ته شول چې وروسته پیښنو تائید کړل او باوري کسانو په ډاګه کړه هیڅوک شک نشي کولای چې د مصر د ۱۹۵۲ کال کودتاء د یهودیانو او عیسویانو د ګټو د ساتلو په تکل شوې وه یهودیان له همغې ورځې څخه چې فلسطین یې نیولی وو پدې پوه شوي و چې د دوی په مقابل کې ستر او لوی خطر د هغه چا له لوري پیښیدای شي چې ملي قوت یې زیات او د فلسطین د خاورې سره یې پوله شریکه ده نو که دا اولس یې ترلاسه او منونکي وګرځاوو نو خپل تر ټولو لوی دښمن به یې له مینځه وړی وي.

زمونږ د دې خبرې دلیلونه په لاندې ډول دي

۱- مرحوم ډګروال معروف الحضري وائي چې ما څو ځل جمال عبدالناصر لیدلی دی چې په فالوجه کې به له نیمې شپې وروسته په پټه وتلو په اسرائیلي موټر کې به سپریده تر څو له یهودي مشرانو سره په ځانګړي ډول وګوري، سهار وختې به بیرته راتلو.

۲ - ډګروال معروف الحضري هغه ساتل شوی سند دی چې جمال عبدالناصر ورته هغه وخت لیکلی وو چې معروف الحضري په فالوجه کې

بندي وو ، په ليک کې يې له ده څخه غوښتنه کړې وه چې د کوهين نومي اسرائيلي جګ تورن سره چې د جاسوسی شبکې غړی وو کومک وکړي او هغه معلومات چې غواړي وريې کړي خو خدای ښبلي دا غوښتنه ونه منله .

۳ - د اسرائيلو مؤسس بن جوربون په يوه کليسا کې د مصر له انقلاب څخه وړاندې ويلي وو چې ډير ژر به په مصر کې عسکري کودتاء وشي پدې کودتاء به اسرائيل له مصريانو څخه زيات خوښ وي [۱]

---

۱ - هاری هوبکنز په خپل هغه کتاب کې چې په لندن کې ۱۹۶۹ کال کې چاپ شوی په ډاګه کړې چې جمال عبدالناصر دوه تنو ته دنده ورکړه چې د ده او د اسرائيلو د ۱۹۵۴ کال د صدراعظم ( موسی شاريت ) تر مينځ د کتنې زمينه برابره کړي ، نوموړي دوه کسان يو په مصر کې د هندوستان سفير او بل دوم مفتوف د مالټا رئيس جمهور وو او په همدې کال کې يې د خپل لاس ليک د پارلمان غړي موريس او رباخ ته هم ورکړ چې ( موسی شاريت ) ته يې ورسوي او په همدې کال جمال عبدالناصر ( د انقلاب اهداف ) نومې کتاب خپور کړ چې پکې د اسرائيلو په ضد د وسله وال جنګ يادونه نه وه شوې په همدې ډول انګريز اديب دافيد هولدن دوه کتابونه چاپ کړل او په هغو کښې يې لدې حقيقت څخه پرده پورته کړه چې نوموړی د جمال عبدالناصر او بن جورين تر مينځ په اړيکو کښې واسطه وو او د دواړو تر مينځ به يې ليکونه وړل راوړل .
هولدن په همغه ورځ ووژل شو چې له القدس څخه قاهرې ته ولاړ او مړی يې د قاهرې د ( نصر ) په ښار کې وميندل شو .
نوموړی څکه ووژل شو او خوله يې د تل لپاره وربنده شوه چې نوموړی د سادات د هغه سفر چې په ۱۹۷۷ کال کې يې القدس ته کړی وو عيني شاهد وو او د ۲۳ جون د انقلاب له هغو اړيکو څخه زيات خبر وو چې له نړيوال يهوديت سره يې درلودې چې په نتيجه کې يې د کامب دافيد ، او واشنګټن او وروسته د مادريد تړونونه لاس ليک شوه .

۴ - ( مایلز کوپلاند ) له هغو اړیکو څخه پرده پورته کړې ده چې مرکزی جاسوسی شبکې پخوا له انقلاب څخه له عبدالناصر سره درلودې او پدې یې ټینګار کړی دی چې نظامی کودتا چیانو یهودیان خپل ومړنی دښمنان نه ګڼل بلکه مرتجع ، د پاچا پلویان او د مصر سیاسي حزبونه یې خپل لومړنی دښمنان ګڼل.

دا خبره هلته جوته شوه چې د کودتاء په لومړنۍ اعلامیه کي یې د فلسطین او یهودو په هکله هیڅ نه وو ویلی.

۵ - د دی انقلاب هغه کړه وړه چې د اسلامي تنظیم د مینځه وړلو او تس نس کولو په لار کې یې له هیڅ وړ اقدام څخه ډډه ونکړه ، د هغه اسلامي تنظیم مینځه وړلو ته یې ملا وتړله چې پوره نیمه پیړۍ یې په مصر کې د اسلام په لور بلنه کوله په فلسطین کې یې د یهودیانو په ضد د جهاد مخکښی درلوده.

دوی څکه دا کار وکړ چې تر څو د دی تنظیم له مینځه وړلو وروسته مصری اولس اسلامي کلک شعور له لاسه ورکړی او هغه قوت یې له مینځه ولاړ شي چې د یهودی یرغل په مقابل کې پری مقاومت کیدای شي.

اسلامي تنظیم د دی کرغیړن انقلاب په دوران کښله خورا زیاتو ستونزو سره مخ شو دوه ځل د خورا وحشی وهنی او بی رحمو وژلو او بندی کولو سره مخ شو یو ځل په ( ۵۴ - ۱۹۵۵ ) کلونو کې د یهودیانو د ۱۹۵۶ کال

---

په همدی ډول د مصر د سیاحت پخوانی وزیر او د انقلاب په لومړیو شپو کې د جمال عبدالناصر د دفتر خاص سکرتر امین شاکر د ۱۹۷۷ کال د دسمبر د ۱۶ ورځی د اهرام پانی د جمعی په ګڼه کې ولیکل چې جمال عبدالناصر ر د انقلابی کونسل نه په پټه له اسرائیلو سره رابطه درلوده او مشهور لیکوال حسنین هیکل د دی اړیکو ټینګولو واسطه وو.

امین شاکر دا خبری څکه په اهرام کښې نشر کړی تر څو د سادات له سفر څخه چې په ۱۹۷۷ کال کې یې اسرائیلو ته کړی وو دفاع وکړی چې سادات هغه څه په ښکاره کړی دی چې له ده څخه پخوانی مشر په پټه کول.

له حملې څخه یوازې یو کال وړاندې او بل ځل په ۶۵ - ۱۹۶۶ کلونو د یهودیانو د ۱۹۶۷ کال د حملې څخه یوازې یو کال وړاندې.

۶ - د دوی په دوران کې د اسرائیلو په ضد دوه جنګونه وشو چې نتیجه یې هر ځل شا ته تګ د اسلام د قوی لښکرو ماتې خوړل او د اسرائیلو د خاورې د ۱۹۴۸ کال د خاورې په نسبت ۷ ځل پراخوالی شو.

دا ټولې نادودې پداسې وخت کې وشوې چې ټول سیاسي او نظامي واک د دوی په لاس کې وو.

نو د دې معلوماتو په رڼا کې ویلی شو چې دا جنګونه یوازې مانورې وې چې اسرائیلو ته یې حق ورکاوو چې د جنګ او فتحې په نوم د خپلې خاورې ساحه پراخه کړي د دوې له خوا د کوم هدف من جنګ اراده نه ده ، او بالآخره د ټولو عربو په مینځ کېد ماتې او ذلت روحیه هومره لوړه وله چې ګنې د دوی ستر او قهرمان فوځ ماتې وخوړه نو نور عربان به هیڅکله د یهودیانو سره د جنګ توان ونه لري.[1]

---

۱ - ځیني داسې شاهدان همدا اوس هم ژوندي دي وائي چې په ۵۶ او ۶۷ کلونو کې د مصر اردو د جمال عبدالناصر په امر له سیناء څخه ووتله. جنرال عبدالحکیم عامر په ۱۹۵۷ کال کې مخالفت وکړ چې د مصر اردو دې له سینا څخه مخ په شاه شي خو چې جمال عبدالناصر ټینګار وکړ نو جنرال عامر په لاندې ټکو مخابره ابلاغ کړه : د رئیس جمهور د امر مطابق مخ په شاه شي....

د ۱۹۶۷ کال د جنګ په هکله التهامی د الاهرام اخبار د ( ۱۹۷۷ کال په ۳۳۱۱۰ ګڼه کې خپل یادداشتونه د شهادت په توګه نشر کړي دي چې جمال عبدالناصر ماته په ځانګړې ډول وویل چې ما عبدالحکیم عامر ته امر وکړ چې باید د ۱۹۶۷ د جون په ۵ نیټه سهار وختي د اردو د افسرانو له یوې ډلې سره په الوتکه کښېني سنیور او د مصر په اردو وګرځیږي خو پداسې حال کښې چې جمال عبدالناصر ر ته سل په سلو کې ثابته شوې وه چې په همدې سهار اسرائیل هم حمله کوي پدې ترتیب د مصر ټولو دافع

۷ - عسکری نظام عملاً د دی لپاره کار وکړ چې اسرائیل په منطقه کې د
یو واقعیت په شکل تبارز وکړی او نړیوالو ته وښوول شي چې د قضیی
اصلی غړی اوس دوی د یو واقعیت په صفت منی ، پدی برخه کي یې په
لاندی اړخونو کې عملی کار وکړ
په اقتصادي میدان کې :
د دی انقلاب تیر ۳۰ کلن تاریخ له هیچا څخه پټ ندی چې مصر یې
په اقتصادي اړخ کي هومره وران او ګډوډ کړ چې د مصر خزانه خالی او

---

هواء قواوو ته امر وشو چې خولی مو شکته کړۍ هسی نه چې د عبدالحکیم
عامر الوتکه درڅخه ولړیږی.
نوموړی وائی چې جمال عبدالناصر دا هم راته وویل چې له سینا څخه د
مصر اردو بیرته راوغوښته لکه په ۱۹۵۶ کال کې چې می بیرته غوښتی وه.
ډګرمن عطار د ۱۷ / ۱۲ / ۱۹۷۷ کال د الاهرام په اخبار کې د جمال
عبدالناصر د ۱۹۶۷ کال نه بښونکی جرم داسی تفسیروی :
ناصر غوښتل چې د مصر له اردو څخه انتقام واخلی ځکه ده ته ثابته شوی
وه چې د مصر اردو په ده نور باور نلری ځکه ده په یمن کښې بی ځایه د
مصر اردو ته سردرد پیدا کړ
ناصر ونشو کولای چې د عبدالحکیم عامر د اندیوالانو بالخصوص د (
شمس بدران ) د هلو ځلو مخنیوی وکړای شی او د دی لپاره چې د ۱۹۶۷
کال نه بښونکی جرم او خیانت د تل لپاره پټ شی نو عبدالحکیم عامر یې
مړ کړ ځکه که هغه یې محکمی ته وړاندی کړی وای نو شاید چې د تاریخ په
وړاندی یې د ۱۹۶۷ د رسوا ماتی ریښتینی مسئول په ګوته کړی وای.
د دی ماتی لپاره د الاهرام اخبار د همغه وخت رئیس تحریر هیکل داسی
مقدمه برابره کړه چې له جنګ څخه یې لړ مخکې ولیکل چې مصری اردو
به لومړی اقدام نه کوی او پدی ترتیب یې د مصر اردو ته اعلان وکړ چې
باید غلی واوسی

اقتصاد يې له صفر څخه هم ورښکته شو او پدی ترتیب يې مصری اولس دی ته اماده کړ چې زمونږ اقتصادي ستونزی د جنګ له امله دی نو څکه باید جنګ بس او اسرائیل په رسمی ډول وپیژنو ، تر څو له اقتصادي بدحالیو څخه چې اوس ورسره لاس او ګریوان یو خلاص شو.

مګر پداسی حال کې چې د مصر د اقتصادي ستونزو اصلی عامل جنګ نه بلکه د واکمن ټولی فاسد او بی تدبیره نظام د اقتصادي ستونزو لومړنی او مهم عامل دی.

تبلیغاتی ساحه :

له مختلفو لارو څخه يې پدی خبره زور واچاوه چې د منطقی یواځیني لوی عسکری قوت مصر جنګ وکړ خو د جنګ په نتیجه کې له ماتی سره مخ شو چې خورا د زړه بداوی سبب شو.

او تبلیغات يې وکړل چې د مصری اولس ټولی ستونزی د جنګ له لاسه دی چې له اسرائیلو سره يې روغه وکړه نو ټولی خوښۍ به يې مخی ته رامنډی کړی

خو واقعیت دا دی چې له اسرائیلو سره د سولی او خوښۍ خبری د صیهونیزم هغه ژور پروګرام دی چې ناپوه او ساده خلک پری غولوی

سیاسي اړخ

په بیرونی برخه کې يې له یهودیانو سره په پټه معاهدی وکړی او په داخلی برخه کې د شدت داسی قدمونه واخیستل چې مصری اولس خورا غوره خلک له لاسه ورکړل د قهرمانۍ او زړورتیا هغه نښی يې له لاسه ورکړی چې تل به د تجاوز کوونکو سره د مقابلی مخکښان وو او پدی ترتیب يې لدی اولس څخه د مقابلی کولو توان ورک کړ

دا ځینی هغه څه دی چې مونږ په لنډ ډول په ګوته کړای شو چې نظامی کودتاچیانو د یهودیانو د پروګرامونو د عملی کولو او د اسرائیلو د اهدافو د پوره کولو لپاره کړی دی

او هغه چې مونږ ته ندی معلوم کیدای شي چې خورا لوی او درانه وی

د سولې وروستې تړون چې له اسرائیلو سره وشو پخوانۍ ټولې خبرې یې پخې کړې او دا چې اوس مصری اولس د یهودی یرغل په درشل کې دی د دی خبرو ښه څرګندوونکی دی.

دا د یهودی اړیکو په هکله څو خبر وی چې یوازې همغه خبره یې په ګوته کړه چې بیګن ویلی دی چې مونږ په مصر کې هومره پاخه دوستان لرو چې په اسرائیلو کې یې لا نه لرو.

دا هم باید پټه نشی چې د مصر د اوسنی خارجه چارو وزیر ښځه یهودی ده او د مصر حاخام چې تر اوسه د ۱۴۰ یهودیانو مشری په غاړه لری له اسرائیلو څخه کومک تر لاسه کوی او شاید چې د مصر دولت یې هم معاش او مصارف ورکړی.

د نصاراوو د اړیکو په هکله:

د الله جل جلاله د وینا مطابق چې فرمائی: بعضهم اولیاء بعض ( د دوی ځینی د ځینو نورو دوستان او ملاتړی دی ).

یهودیانو او نصاراوو تر مینځ که پوره یو والی نه وی نو نژدیوالی خو یې هرو مرو شته دا یو والی یې مونږ د لاندی حوادثو په لیکلو ښه څرګندولای شو.

۱ - وروسته لدی چې ( شنوده ) نومی سړی د قبطیانو مشری ترلاسه کړی ده د نصاراوو پروګرامونه ګړندی شوی دی، ترڅو له مصر څخه ( قبطی دولت ) جوړ کړی.

د دوی په وړاندی مصر پخوا هم د قبطیانو وو، پدی لړ کې یې لومړی ځل مصر په قبطی اولس ( قبطی امت ) یاد کړ او ورپسی یې دعوه وکړه چې په مصر کښد قبطیانو شمیر اته میلیونو ته رسیږی سره لدې چې رسمی شمیر یې دری میلیونه څرګندوی او هم یې د نفوسو د زیاتوالی لپاره د ژرو ودونو کولو او زیاتو اولادونو په پیدا کولو ټینګار وکړ سره لدی چې مسلمانان لږ اولادونو پیدا کولو ته تشویق کیږی.

۲ - دوی د وطنی ( زما وطن ) په نوم مجله د دی لپاره خپره کړه چې ګنی مصر د دوی وطن دی.

۳ - د قاهرې په مینځ په یو داسې ستراجیکې ځای کې د یوې کلیسا جوړول چې د ښار د هرې لرې برخې څخه په یو ډول ښکاره شي ، تر څو همدا کلیسا د نصرانیت د خپرولو مرکز وي

۴ - د کلیسا ګانو جوړول خورا په چټکۍ روان دی ان تر دې چې پدې وروستیو وختونو کې د یو مکتوب په واسطه د ۵۰ کلیساګانو اجازه ورکړې شوې وه کلیساګانې پداسې نقشه جوړیږي چې په راتلونکې وخت کې ترې د یوې کلکې مورچلې استفاده هم وشي

۵ - په کلیسا ګانو او نورو مقدسو ځایونو کې د وسلو راټولو منډه په چټکۍ روانه ده

وسله یوازې له مصري ډیپوګانو او وسله وال پوځ څخه په غلاء نه اخیستل کیږي بلکه له بهر څخه هم راوړل کیږي چې زیات وخت پرې واکمن خلک نه خبریږي او که کله خبر شي هم سترګې پټوي پداسې حال کې چې رسمي مقامات همیش هڅه کوي چې له مسلمانانو وسله راټوله او بې وسلې یې کړي

۶ - په پراخه اندازه یې د ځمکو او امکاناتو اخیستل پیل کړي دي

دا کار یې یهودیانو ته ورته دی ان تر دې چې د مسلمانانو جوماتونه او نور مقدس ځایونه هم د مسلمانانو د غفلت له کبله رانیسي.

پدې وروستیو وختونو کې یې په فطرون نومې ځای کې یې له وزارت تعمیرات څخه د زرو جریبو په شاو خوا کې ځمکه واخیسته او د نظامي تربیي لوی مرکز یې پکې جوړ کړی دی چې ډلې ، ډلې ځوانان پکې د راتلونکې جګړې لپاره روزي

یهودیان غواړي چې د دوی جنوب او شمال دواړه باید محفوظ او د نصاراوو ملاتړ وي د شمال له لورې لبنان او د جنوب له لورې مصر او راتلونکې پراختیا به د ختیځ په لور د اردن ، سورې او عراق په خاورو او د جنوب په لور د حجاز هغو ځمکو په لور وي چې یهودیان یې ( د بنی قریظه بنی نضیر او بنی قینقاع ) د ځمکو په نوم دعوه کوونکې دي ، یهودیان هغه

ځمکې همیش یادوی چې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم او بیا وروسته حضرت عمر رضی الله عنه تری په بشپړ ډول ویستلی وو.

په مصر کې د اسلام راتلونکی :

د راتلونکی په هکله خبری غیب ویل دی خو لدی کبله چې الله پاک مونږ ته په ( اعدوا ) امر کړی دی چې ځان آماده کړو او د آماده والی لپاره پکار ده چې چاپیریال په پوره ډول وڅیړل شي.

هغه پیښې چې زمونږ په چاپیریال کې واقع کیږی څرګندوی چې صیهونیت له نړیوال عیسائیت سره لاس یو کړی دی او په ګډه هڅه کوی چې مصر قبطیانو ته د تحفی په ډول ورکړی نو په مصر کې به داسی عیسائی حکومت چې د یهودیانو دوست به وی مینځ ته راشی نو له لاندی دوه هدفونو څخه به یو ترلاسه کړی

۱ } یا به مسلمانان له مینځه یوسی او ځمکې او خاوری به یې تری واخلی لکه پخوا یې چې په اندلس کې وکړل او اوس یې په فلپین او فلسطین کې وکړل

۲ - او یا به یې سپک او واک به تری واخلی او عیسویانو ته به یې وسپاری لکه په تنزانیا کې چې په ۸۵ ٪ مسلمانانو عیسویان حکومت کوی او لکه څنګه چې په حبشه کې په ۷۵ ٪ مسلمانانو عیسویان حکومت کوی

د آئینی بل مخ څه وائي :

په همدی ډول که په مصر کې هم ۹۵ ٪ مسلمانان له اسلامي پوهی لری پاتی او اسلامي مشرانو څخه لری اسلامي پوهه او جهاد یې پری ښود نو ممکن ده چې مصر هم د آندلس او یا د اوسنی زمانی د تنزانیا له حالاتو سره مخ شي

او که الله پاک لورینه وکړه مصریان له خوب څخه ویښ د اسلام په سیوری کې یې د اسلامي تحریک په څنګ کې جهاد پیل کړ نو ډیر ژر به دښمنان پوه شي چې د اسلام خاوره به هیڅکله په نصاراوو او یهودیانو ونه پلورل او

هغه مصر چې د پرونیو یرغلګرو هدیره ده د ننه نیو یرغلګرو تس نس کوونکی به هم شي

وَاللَّهُ غَالِبٌ عَلَى أَمْرِهِ وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ - وَاللَّهُ مُتِمُّ نُورِهِ وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُونَ - وَسَيَعْلَمُ الَّذِينَ ظَلَمُوا أَيَّ مُنقَلَبٍ يَنقَلِبُونَ

نصراني هلی ځلی او مصر:

د ۱۹۷۲ کال ۳ میاشتي په ۲۵ نیټه د بابا شنوده په مشری د اسکندری په کلیسا کې په لاندې ډول جلسه وشوه : له عبادت وروسته بابا شنوده له حاضرینو څخه وغوښتل چې عام خلک دې ولاړ پادریان، شتمن او داعیان دې پاتې شي

د جلسې په پیل کې بابا شنوده زیری ورکړ چې ټول کارونه د پروګرام په مطابق دوام لری او د هغو پروګرامونه په رڼا کې چې مونږ وضع کړی دی لاندې موضوع ګانې څیړم

**لومړی } د کلیسائی اولس شمیر :**

زمونږ مراجعو مونږ ته معلومات راکړی دی چې اوس په مصر کې نژدې اته میلیونه عیسایان ژوند کوی لدې تکی څخه ټول عیسایان باید خبر وی او هم یې باید د مسلمانانو غوږونو ته هم ورسوو ترڅو کله هم چې مونږ له حکومت څخه خپل حقوق غواړو نو پدې تناسب یې باید وغواړو

مونږ پریکړه کړی ده چې باید د عیسویانو شمیر د مصری مسلمانانو نیمائی ته ورسیږی ځکه د لومړی ځل لپاره دری پیړۍ پخوا لومړی له هغه چې عربی او اسلامي استعمار په مونږ حمله وکړی په مصر کې د عیسویانو او مسلمانانو شمیره برابره وه

کلیسا واجبوی چې له ۱۲ څخه تر ۱۵ کلونو په موده کې مونږ باید دا نیمګړتیاوی پوره کړو نو لدې کبله کلیسا په خورا ټینګو الفاظو سره د اولادونو کم والی او یا یې په وقفه یې ډول پیدا کول منع کوی او هغه څوک چې بې له صحی حالاتو چې د کلیسا ډاکټران یې تشخیص کړی چې ګنی

اولاد پیدا کیدل د ښځې او یا کوچني د مرګ سبب ګرځي د اولاد د پیدا کیدلو مخنیوی وکړي نو د کلیسا له لارښوونو سره یې دښمني اعلان او مذهبي غرور یې په پښه وواهه.

د عیسائیانو د شمیر د زیاتوالي لپاره کلیسا لاندې پریکړې اعلانوي:

د اولاد د پیدا کیدو مخنیوی او یا یې وقفه یې پیدا کول په کلکه منع دي.

مسلمانان باید وهڅه ول شي چې اولاد له سره پیدا نه او یا یې په وقفه یې ډول پیدا کړي.

دا کار مونږ ځکه ښه کولای شو چې د مصر (۶۵ ٪) ډاکټران او صحي مرکزونه د کلیسا په لاس کې دي.

عیسایان باید وهڅه ول شي چې اولادونه زیات پیدا کړي او پدې لار کې باید له تنګ لاسو عیسویانو سره مالي مرسته وکړو.

حکومتي او غیر حکومتي صحي مرکزونو ته باید وویل شي چې د عیسویانو صحي حالت ته جدي پاملرنه وکړي تر څو د دوی په مینځ کې مرګ کم شي خو د مسلمانانو سره باید بالعکس معامله وکړي.

هڅه باید وشي چې ځوانان ژر ودونه وکړي نو ځکه باید د ودونو مصارف کم او کلیسا د نکاح ترلو فیس په ښارونو او هغو کلیو کې چې فقیران پکې اوسیږي لږ واخلي.

کلیسا همدا اوس اعلانوي چې د عمارتونو او پلازو خاوندان باید کورونه او تجارتي ځایونه مسلمانانو ته په کرایه ورنکړي او هغه څوک چې دا کار وکړي د خدای او کلیسا له مهربانۍ څخه به بې برخې وي او هم باید عیسویان هڅه وکړي چې مسلمانان له هغو ځایونو څخه چې په کرایه یې ورکړي دي په مختلفو اسلوبو سره وباسي.

او چې مونږ وتوانیدو چې د اوسیدو ځایونه ډیر کړو نو باید له تنګ لاسو عیسایانو سره مرسته وکړو چې ژر ودونه وکړي خو بالعکس د مسلمانانو په هکله هاند ووهو چې واده کول پکې نور هم سخت او دروند کار شي، که دا کارونه مونږ وکړل ډیر ژر به خپل هدف ته ورسیږو.

زمونږ د دې پریکړو هدف همدا دی چې د مسلمانانو د زیاتوالی مخنیوی وشی خو عیسویان باید په خورا زیاتی چټکتیا سره ډیر شی.

## دویم } د کلیسائی اولس مالی وضعه

بابا شنوده وویل : مال زمونږ د غوښتنی مطابق راروان دی ، دری مهم ځایونه زمونږ مالی ستونزی حل کوی : امریکا ، حبشه ، واتیکان

خو مونږ باید خپل اقتصادي پروګرامونه د هغه مال په اساس عیار کړو چې په مصر کې یې د کلیسائی اولس مالدار خلک راټولوی او همدا ډول د ځمکی اخیستلو ته زیاته پاملرنه وشی او هغو عیسائی ناتوانو خلکو سره لاس وشی چې د کور جوړولو پروګرام لری.

رسمی راپورونه وائی چې د مصری تجارت ۶۰٪ د عیسویانو په لاس کې دی دا وهڅه باید وشی چې نور یې هم پنځی ښخی شي تر څو عیسویان مالدار او د مسلمانانو له لاسونو څخه مال واوزی تو ځکه مونږ یو ځل بیا عیسویانو ته په ټینګه وایو چې باید له مسلمانانو سره ټول اقتصادي اړیکی پری او یوازې په اضطراری حالاتو کښې یې په محدوده اندازه وساتی.

د دې خبری معنا دا ده چې : د مسلمانانو وکیلانو ، استادانو ، ډاکټرانو ، دواسازانو او د هغو روغتونو او لویو تجارتی مرکزونو سره په پوره ډول رابطه قطع شی چې ملکیت یې د مسلمانانو په لاس کې وی په همدی ډول باید مصرفوونکی باید عیسائی اداری خپل ضرورتونه له عیسویانو څخه پوره کړی بی له استثنائی حالاتو څخه بل چا ته رجوع ونکړی.

په همدی ډول باید له مسلمانانو انجینرانو او فنی کسانو څخه په هیڅ ډول کار وانه خیستل شی که څه هم عیسوی انجنران او فنی خلک مجبوریدل چې له یوی منطقی څخه بل ځای ته ولاړ شی بیا یې وویل : د راتلونکی نژدی او لری مودی اقتصادي پروګرامونو لپاره پورتنی کارونه ضروری دی او باید ځانګړی پاملرنه ورته وشی.

## دریم تعلیمي اړخ

بابا شنوده وویل : هغه تعلیمي پالیسي چې همدا اوس په کلیسا کې روانه ده باید نوره توجه هم ورته وشي په خاص ډول چې مسلمانانو هم دا ډول هلې ځلې د جوماتونو له لارې پیل کړې دي ترڅو د دې کوښښونو په نتیجه کې مونږ هغې مرحلې ته ورسیږو چې په پوهنتون او په ځانګړي ډول په علمي ښوونځیو کې زیات محصلین زمونږ وي

بیا یې وویل : زه کلیسائي اولس او بالخصوص استادانو ته زیرې ورکوم چې د دوی د هلو ځلو په نتیجه کې مونږ په مهمو کارونو لکه طب ، دواسازي ، انجنیري او نورو کې ۶۰٪ برخه من یو ، او له رب مسیح یسوع څخه غوښتنه کوم چې نوره او زیاته مهرباني راباندې وکړي چې په نژدې راتلونکې کې دا معیار پورته ولاړ شي

## څلورم : تبلیغ اړخ

بابا شنوده وویل : هغه هلې ځلې چې اوس د عیسائیت د تبلیغ لپاره کیږي باید نورې زیاتې او ګړندي شي پدې معنا چې لدې وروسته مونږ باید په خورا زیاته توجه د افرادو په ځای د ډلو او ټولنو د دعوت په لور مخ واړوو ځکه زمونږ اوسني پروګرام دا دې چې باید زیات مسلمانان د خپل دین او حضرت محمد [صلی الله علیه وسلم] په هکله شکمن کړو او دا خبره ضرور نده چې هغوی دې عیسویان شي ، ضروري همدا ده چې هغوی د قرآن او محمد [صلی الله علیه وسلم] په رښتینولۍ کې شک من شي

نو ځکه باید ټول وسایل او ټولې ممکنې لارې په کار واچول شي تر څو خلک د قرآن په هکله شک من ، د قرآن د بطلان دلایل ورته ښکاره او د محمد رښتینولۍ ورته درغجنه وبریښي

که مونږ دا کار وکړای شو نو په راتلونکو نژدې وختونو کې به مونږ ستر بری تر لاسه کړو ځکه دا ډلې او پرګنې به له لارې څخه لرې شوې وي ، که څه هم له مونږ سره به نه وي خو زمونږ پر ضد به هم نه وي

د دی کار په دوران کې تر ټولو ضروری خبره دا ده چې په خورا هوښيارتيا او زيرکتيا سره په پټه خوله قدم واخيستل شی هسي نه چې ويده مسلمانان راويښ او پخوانۍ هيری شوی خبری وريادی شی هغه سهوه چې په پخوا شوی ده بايد بيا تکرار نشی او هغه دا چې عيسوی مبلغين خو پدی توانيدلی وو چې زيات مسلمانان د مسيح رب په حقانيت قانع کړی خو له بده مرغه مسلمانان هم ديته متوجه شول چې عيسويان په خورا چټکتيا سره مخ په وړاندی روان دي

د مسلمانانو اوږد تاريخ ثابته کړی ده چې دا کوم اسان کار ندی چې د مسلمانانو په ضد دی څوک په ښکاره ډول فعاليت وکړای شي د مسلمانانو رابيدارول زمونږ ټول پروګرامونه شنډوی له هدف څخه مو وروسته کوی او زمونږ ټولی هلی ځلی بی ګټی پاتی کيږي

نو ځکه ټولو کليساګانو ته هدايت شوی دی چې بايد له مسلمانانو سره د دوستۍ او اشنائی لار ونيسی او ټول مذهبی مشران ، او د کليسا سرپرستان بايد د مسلمانانو په مذهبی غونډو کې برخه واخلی د اخترونو مبارکی ورکړی ، او د وزارتونو ، خيريه مؤسسو او نورو غونډو په دوران کې د مينی او محبت ښکارونه وکړی

بيا يې په غوڅه لهجه وويل : مونږ بايد د مسلمانانو له ستونزو او کړاوونو څخه پوره ګټه واخلو او مونږ به هيڅکله مخ په وړاندی ولاړ نشو او نه به څه تر لاسه کړای شو که چيری د اسرائيلو سره مشکلات د جنګ او يا سولی له لاری حل شو

بيا بابا د هغو خلکو نومونه په بدو الفاظو ياد کړل چې خپلی شخصی ګټی د کليسائی اولس په ګټو لومړی کوی او هغه هدف له ياده وباسی چې مسيحی اولس يې د تاريخ په اوږدو کې د لاس ته راوړلو لپاره هلی ځلی کوی ، او بيا يې وويل چې پدی ور خلکو بايد باور ونشی او ټينګار يې وکړ چې بايد همدا اوس خپلی هغه غوښتنی چې وروسته به وليکل شی په رسمی ډول حکومت ته وړاندی شی ځکه که په اوسنيو شرايطو کې مونږ له

حکومت څخه څه تر لاسه نکړو نو بیا یې شاید ژر تر لاسه نشو کړای او بیا یې په غوڅو تورو کې وویل : ټول باید پوه شی په خاص ډول د ناتوانو زړونو خاوندان باید پوه شي چې د نړۍ ستر ځواک زمونږ تر شاه ولاړ دی ، مونږ یوازې نه یو او مونږ به هرو ، مرو خپل هدف ترلاسه کوو خو هغه لومړنی عامل چې زمونږ بری وریوری ترلی دی د عیسائی اولس له یو والی او یو له بل سره د ټینګو اړیکو څخه عبارت دی او که چیری دا یو والی او ښی اړیکی له مینځه ولاړی نو که څه هم زمونږ په شاه تر ټولو لوی قوت هم وی هیڅ به مو په وس پوره نشی ، او بیا یې وویل : هغه زمونږ له یاده ندی وتلی چې د کلیسائی اولس یو والی له مینځه وړی ، دوی باید توبه وباسی له خپلو شومو کړو څخه لاس واخلی کیدای شي چې رب ښښنه ورته وکړی .

د باباد هدف هغو خلکو ته اشاره وه چې د جلا والی خبری یې کولی او غوښتنه یې کوله چې غوښتنی دی اوس حکومت ته نه وړاندی کیږی .

**پنځم } غوښتنی**

بابا شنوده خپلی هغه غوښتنی چې په رسمی ډول به یې حکومت ته وړاندی کړی په لاندی ډول په ګوته کړی

۱ - د دولت په سیاسي پروتوکول کې دي د بابا شنوده مقام له رئیس جمهور څخه وروسته او له صدراعظم څخه مخکې په دو یم مقام کې وی

۲ - عیسویانو ته دی اته وزارتونه په حکومت کې ورکړای شي

۳ - د اردو او پولیسو لویو مقامونو څلورمه برخه دی دوی ته ورکړل شي

۴ - د ملی ادارو د لوړو مقامونو څلورمه برخه دی هم دوی ته ورکړای شي لکه د موئسسو شرکتونو ، مشران ، والیان، د وزارتونو معاونین ، عمومی رئیسان او د ښاروالی رئیسان

۵ - د دی ځایونو د پوره کولو لپاره دی د بابا سره مشوره وشی او بابا دی حق ولري چې ځینی په خپله په ګوته کړی

۶ - دوی ته دی اجازه ورکړای شي چې جلاء پوهنتون جوړ کړي کليسا همدا اوس د پوهنتون جوړولو پروګرام اخرني مرحلي ته رسولی دی چې د معهدونو علمی ، سیاسي او فکری پوهنځيو څخه عبارت دی.
دا پوهنتون به د کلیسا د مال په واسطه چلول کیږي.
۷ - اجازه دی ورکړای شي چې په خپلو روبو یوه ځانګړی راډیو په کار واچوی
په آخر کې بابا ټولو حاضرینو ته زیری ورکړ او لدوی څخه یې غوښتنه وکړه چې دا زیری ټول عیسائی اولس ته ورسوی چې مونږ زیات باور لرو چې ډیر ژر به ځمکه له عربی متجاوځینو ( د دوی په خوله ) څخه خلاصه او اصلی واکمنانو ته به وسپارل شي او د مثال په ډول یې د اسپانیا نوم واخیست چې تقریباً ۷ پیړۍ د مسلمانانو په لاس کې وه او بیا یې وویل چې زمونږ په معاصر تاریخ کې هم ډیر ځایونه دی چې خپلو اصلی خاوندانو ته سپارل شوی دی او شاید هدف یې اسرائیل وو چې یهودیانو ته په لاس ورغی.
د جلسی په پای کېيې خپلی خبری په لاندی دعاء پای ته ورسولی:
مسیح عیسی رب دی تاسی وساتی او ستاسی په هلو ځلو کېدی برکت واچوی ( د دوی د عقیدی مطابق )

## لبنان

لومړۍ خبری:
لبنان د سپینی بحیری په ختیځه برخه کې پروت دی چې په ختیځه او شمالی لوری د سوری او د جنوب په لوری په اشغال شوی فلسطین او په لویدیځه لوری د سپینی بحیری پوری تړلی دی ، د استعمار د اوسنیو هغو لوبو څخه وړاندی چې اولسونه یې سره وویشل د سوری برخه وه ، اسلام ورته د حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه په زمانه کې راغی او ټولو اوسیدونکو یې د دین د جلا والی سره ، سره د اسلامي دولت په سیور کې د عدالت امن او ورورولۍ په فضاء کې سره ګډ ژوند کاوو
د تاریخ په اوږدو کې ډیرو پخوانیو امتونو لکه اکادیین ، کنعانین ، اموریین ، فینیقیین ، فارسیانو ، هګسوسیانو او هغو رومیانو حکومت

کړی دی چې غساسنه عرب یې دوستان وو ، او کله چې سوریه د مسلمانانو له لوری فتحه شوه نو لبنان او د شام ټولی برخی د اسلامي دولت برخی وګرځیدی .

لدې کبله چې لبنان د بحر په څنډه کې روت دی نو تل یې له بیرونی نړۍ سره ښې اړیکی وی ، د لبنانی اوسیدونکو اړیکی له اسلام سره ټینګی وی ان تر هغو چې صلیبیانو په شام حملی پیل او له ( لبنانی موارنه ؤ ) او ( باطنی شیعه ګانو ) څخه یې همکاری وغوښته چې د مسلمانانو په ضد ورسره لاس وکړی .

کله چې صلیبیانو د صلاح الدین ایوبی په لاس ماته وخوړه لبنان یو ځل بیا د اسلامي دولت جزء وګرځیده .

په ۱۵۱۷ کال کې چې عثمانیانو مصر ونیوه نو لبنان او د شام نوروولایتونه تر لومړی نړیوال جنګ ۱۹۱۴ - ۱۹۱۸ پوری د عثمانی دولت جزء وګرځید .

او کله چې د عثمانیانو واکمنی کمزوری شوه نو صلیبانو موقع وګټله او د ۱۸۶۰ کال پروتوکول مطابق یې د مذهبی او طائفی ډلو د ژوندی کولو لپاره هڅی وکړی نو د همغه پروتوکول مطابق په لبنان کې یې داسی وضع مسلطه کړه چې د هری مذهبی ډلی مشر خپل کارونه په هغه ډول پرمخ بیائی چې د هغه بیرونی دولت چې همکاری ورسره کوی د اهدافو او اغراضو مطابق وی .

د عثمانی ترکانو اثر ورو ، ورو په لبنان کمیده ان تردی چې د ۱۹۱۸ د ماتی په نتیجه کې ترکان اماده شو چې د ۱۹۲۰ کال د سان ریمو د تړون مطابق یې فرانسویانو ته وسپاری ، چې فرانسی پری تر ۱۹۴۱ کال پوری حکومت وکړ .

لدی وروسته که څه هم لبنانیانو خپل مستقل حکومت درلود خو د نړیوال صلیبیت او صیهونیت د ملاتړ په نتیجه کې د کفر او الحادی حرکتونو له اغیزو څخه بیرون پاتی نشو .

**اوسنی کړاو د پخوانیو پروګرامونو له کبله :**

لبنان هغه هیواد دی چې په ګرده اسلامي نړۍ کې د دری ګونی ناپاک وحدت د استعمار ګرو دسیسو ښکار شوی دی.

دری ګونی ناپاک قوتونه عبارت دی له (صلیبیت ، صیهونیت او الحاد) څخه اوس د لبنان خاوره د نړیوالو مسابقو میدان دی چې د لبنان داخلی وضعیت او مذهبی ډلی د خپلو شومو اهدافو د پوره کولو لپاره چې هغه له عربیت او اسلام څخه یې بیرون وړل دی وسیله ګرځوی.

د دی استعمار هلو ځلو نتیجه هغه وخت ښکاره شوه چې د **۱۹۷۵** کال د اپریل د میاشتی په ۱۳ نیټه داخلی جنګ پیل او هری لوری ته یې سپرغۍ والوتی.

هوښیار خلک هلی ځلی کوی چې د دی اور لمبی خپری نشی خو له بده مرغه چې دا اور همدا اوس په خورا تیزۍ خپریدونکی دی او هره ورځ خورا زیات کسان د دی اور په شغلو کې سوزی چې مرګ یې نه د خدای د لاری د جهاد او نه د دنیا او اخرت د ښه والی لپاره صورت نیسی.

که څوک وغواړی چې د لبنان د مشکلاتو او د جنګ د پیل کیدو په هکله څیړنه وکړی نو باید چې د صلیبیانو د پخوانیو او اوسنیو شومو پروګرامونو او د هغو مذهبی ستونزو په هکله چې هلته دی او د حکومت طرز او سیستم چې نړیوال ښکیلاک هلته عملی کړیدی په باره کې بشپړ معلومات ولری مونږ به په لنډ ډول پدی برخه کې څه ولیکو په تفصیل لیکل یې په څو کتابونو کې ممکن ندی.

**د لبنان په هکله د پخوانیو او اوسنیو عیسویانو هیلی**

تر ټولو لویه هیله یې همدا وه چې لبنان له عربیت څخه لری او د هغه عیسویت په لمن کې یې ورواچوی چې همدا اوس د صیهونیزم ملاتړی دی.

صلیبیانو په دیارلسمه پیړۍ کې د لبنانی موارنه ؤ په واسطه داسی کسان پیدا کړل چې په شام کې د خپلواک عیسوی هیواد د جوړیدو لپاره هلی ځلی وکړی د دی کار لپاره فرانسی بډی راوهلی وی چې د همغه وخت پاچایانو یې د لبنانی عیسویانو ملاتړ اعلان او موارنه یې وهڅول چې د یو

خپلواک مسیحي هیواد چې له عربیت او اسلام سره یې هیڅ تړون نه وی د جوړیدلو لپاره هلې ځلې وکړي

که عربي او اسلامي مشرانو دا حقیقت درک کړی وای او منلی یې وای چې دښمنان څه کوي ؟ او بیا یې په همغه رڼا کې سیاسي دریځ نیولی وای نو نن به یې د لبنان او هغو هیوادونو په هکله چې د لبنان د پیښنو تر شا ولاړ دی یو اسلامي موقف او دریځ درلود.

راځئ چې هغه لیک ولولو چې د فرانسي پادشاه نهم لویس د ۱۲۵۰ کال د مې میاشتې په ۲۱ نیټه د لبنان مورانه ؤ ته لیکلی وو.

مونږ پوخ باور لرو چې د پاک مارون په نوم جوړ شوی خلک د فرانسوی امت برخه او له فرانسي سره هومره مینه او محبت لری لکه څنګه یې چې فرانسویان له فرانسي سره لري.

نو مونږ باید هم خوابا تاسي ته هاغه درکوو چې مونږ به هم د مورانه ؤ هومره ملاتړ کوو لکه څنګه چې د فرانسویانو کوو.

زه او هغه څوک چې د فرانسي په تخت ناست یو تاسي ته د زړه له کومې ډاډ درکوو چې ستاسي او ستاسي د ټول اولس ملاتړ به هغه ډول کوو لکه څنګه چې د فرانسوي اولس کوو.

د دوی دا اړیکي د وختونو په تیریدو هم تازه پاتې شوي.

په ۱۷ پیړۍ کې د فرانسي پادشاه څوارلسم لویس د ۱۶۴۹ کال د اپریل د میاشتې په ۲۸ نیټه مارونی ډلې ته لاندې لیک ولیږه.

زه لویس د فرانسي پاچا هر هغه چا ته چې دا لیک ولولي اعلانوم چې مونږ د پاچائی فرمان په رڼا کې لدې وخت څخه چې دا پاڼه لاس لیک کوم زمونږ خاص ملاتړ او ملګرتیا بطریک او عیسائی مارونی اکلیروس سره ده چې د لبنان په غرونو کې استوګنه لري.

زمونږ هیله ده چې دوی د تل لپاره پدې حقیقت خبر او د ټولو فرانسویانو دنده ده چې لدوی سره هر ډول ملاتړ وکړي په سخته کې ورسره لاس وکړي اوپه اقتصادي ، اجتماعي ، تعلیمي چارو کې ورسره مرسته وکړي

فرانسويانو له موارنه ؤ سره لاس کړی وو انګريزانو له دروزو او روسانو د شومو هلو ځلو په نتيجه کې مذهبی تعصوبونه راپورته چې په نتيجه کې د ۱۸۶۰ کال د ديرالقمر خونړۍ پيښه چې وروسته يې ټول لبنان ونيو مينځ ته راغله چې بالاخره د همدغه کال د اګست په مياشت کې انګليس ، فرانسه ، روسيه سويس او ترکيه راټول او پريکړه يې وکړه چې :

د لبنان د پيښو د حل لپاره دی بيرونی هيوادونه مداخله وکړی چې په پای کې د لبنان پروتوکول په نوم د لبنان ځينی منطقی لکه صيدا طرابلس او بيروت چې زيات اوسيدونکی يې مسلمانان دی له لبنان څخه جلاء او پدی ډول يې هڅه وکړه چې لبنان يو سوچه عيسوی هيواد پاتی شي .

په ۱۹۲۶ کال کې چې لبنان او سوريه د فرانسی په استعمار کېوو د سويس د لوزان تړون په نوم يې ځان ته حق ورکړ چې په خپل زړه ځينی ځايونه يو له بل سره وتړی نو د سوری د کوچنی کولو په خاطر يې لبنان لوی او ټول لوی ښاورنه لکه بيروت ، صيدا ، طرابلس ، سهل البقاع ، بعلبک ، راشيا او مرجعيون يې بيرته ورپوری وتړل .

فرانسی د مذهبی تعصبونو د پياوړی کولو په تکل د دولت لوړ مقامونه د مذهبی ډلو په مينځ کې داسی وويشل چې جمهوری رياست يې موارنه ؤ ته ، صدراعظمی يې شيعه مسلمانانو او د خارجی چارو مشری يې سنی مسلمانانو ته ورکړه .

او پدی ډول يې ډير هغه هيوادونه چې د عربيت او اسلام په نوم يې پاچائی کوله بی لاری ، او ډير داسی مزدوران يې وروزل چې د هغوی زړونو ته دا خبره پريوته چې لبنان بايد يو عيسوی هيواد شی .

دوی ټول وسايل پدی لار کې په کار واچول چې اسلام او عربيت تحقير او سپک کړی

د عربيت په لور بلنه يې د اسلام په لور بلنی سره مرادفه وګڼله او پخه دښمنی يې ورسره اعلان کړه

هغو رئيس جمهورانو ته يې چې دا دنده ورسپارلې وه په کامل ډول يې بشړه او د غرب په ضد د اقدام کولو هڅې يې شنډې کړې.

آن تردې چې د لبنان جمهور رئيس عربي ټولنه له ياده وويسته او د امريکا د جمهور رئيس ايزنهاور هغه پروګرام چې د لبنان لپاره يې جوړ کړی وو په ډاګه تائيد کړ.

د ده همدا ملاتړ او ځينې نورې پيښې د لبنان د ۱۹۵۸ کال د داخلي شخړو د پيښيدو سبب شو، چې بالاخره کامل شمعون د امريکا رسمي ملاتړ ته غږ وکړ او د امريکا بحري بيړۍ د لبنان په ساحل کې لنګر واچاوو تر څو د لبناني اولس او د جمهور رئيس د ماروني ډلې او هغه نظام ملاتړ وکړي چې د عيسويت مصالح تر هر څه لوړې او د مسلمانانو مصالح تر پښو لاندې کوي، امريکايانو د مستقيمې مداخلې لپاره دا بهانه وګڼله او ويې ويل چې موږ ته رسمي بلنه راکړې شوې ده پداسې حال کې چې دوی ته يوازې هغه عيسوی جمهور رئيس بلنه ورکړې وه چې دی يوازې او له ټول اولس څخه يې نمايندګي نشوه کولای او هغه هم داسې يو سړی وو چې د نړيوال مسيحيت د مصالحو لپاره يې هر څه ته لاس وړاندې کاوو.

## لبنان او مذهبي تعصب

د لبنان د ټولو داخلي او خارجي ستونزو مهم او اساسي عامل مذهبي تعصب دی چې د همدی تعصب په نتيجه کې د ۱۹۷۵ کال کورنۍ شخړې پيښې شوې.

او څرګنده ده چې له مذهبي تعصب څخه تل يوازې او يوازې د اسلام او عربو دښمنانو ګټه پورته کړې ده.

تاريخ په ډاګه کړې ده چې د لبنان مذهبي تعصبونه هغه وخت اوج ته ورسيدل چې د نولسمې پيړۍ له نيمائي څخه ديخوا غربي استعمار لاس وهنې پيل کړې.

د دې لپاره چې د مذهبي ډلو رول ښه څرګند شي نو غواړم چې د دې ډلو د څرګندولو لپاره لنډ معلومات وړاندې کړم.

د لبنان مذهبی ډلی په عمومی ډول دوه دي :

مسیحی ډلی - اسلامي ډلی

چې دا هر یوه یې په مختلفو څانګو ویشل شوی خو د ټولو په هکله یې د خپل منځی اړیکو په برخه کې د لوی الله جل جلاله هغه مبارکه وینا چې د یهودیانو په هکله یې کړی رښتینولی پیدا کوی چې فرمائی :

تَحْسَبُهُمْ جَمِيعًا وَقُلُوبُهُمْ شَتَّى ذَلِكَ بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَا يَعْقِلُونَ

( ته پری د یو موټی والی ګومان کوی او د هغوی زړونه خواره واره دی دا ځکه چې دوی له عقل څخه کار نه اخیستونکی خلک دی )

**مسیحی ډلی :**

مسیحی ډلی عبارت دی له : موارنه ، روم ارتودکس ، روم کاتولیک ، ارمن او نوری کوچنۍ ډلی له پروتستانتو او اجیلینو څخه پدی ډلو کې تر ټولو لویه او په پیښو کې رول لرونکی ډله د ( موارنه ) ډله ده چې د دولت مهمی څوکۍ د دوی په لاس کې دی .

د جمهوری ریاست او امنیت چاری لدوی سره دی د حکومت مهم وزارتونه او د ملی شورا زیات غړی په دی ډلی پوری تړلی دی رښتیا خبره دا ده چې د دی ډلی لوړ والی د هغی مغالطی او ټګۍ په نتیجه کې مینځ ته راغلی دی چې وائی د دی ډلی منوونکی تر هر چا زیات دی خو واقعیت د دی خبری په خلاف دی ، او مسلمانان په واقعیت سره لدوی څخه زیات دی نو ځکه موارنه نه منی چې سر شماری دی وشی ، که نه نو د دوی درواغ ښکاره او د دوی درواغجن به حقوق چې د زیاتوالی په نوم یې ترلاسه کړی دی له مینځه به ولاړ شي

د دی ډلی د زیاتو حقوقو د ترلاسه کولو سپین سترګی د ( کتائبو حزب ) د مشر له هغی وینا څخه ښه څرګندیږی چې کله نوموړی په ۱۹۶۰ کال کې د خپل وزارت په دوران کې وویل : مارنه ډله باید زیات حقوق ولری په خاص ډول په اقتصادي برخو کې ځکه خیړنی ثابتوی چې د لبنان د ټولو

وارداتو ( ۸۳ ٪ ) فیصده مرونیان اخلی ، نو که دا ډله نه وی د لبنان بازارونه به بند او تجارت به یې په ټپه ولاړ وو .

او پدی ډول په واقعیتونو سترګی پټوی او اټکلی خبری ته د ځیرنی نوم ورکوی .

د روم ارتودکس ډله د قیصری روسانو غلامان او لاس پوځی وو .

خو چې په روسیه کې کمونستی انقلاب مینځ ته راغی او دین سره یې دښمنی اعلان کړه نو دوی هم بیرونی ملاتړ له لاسه ورکړ او د مجبوریت له مخی د هغی عربی نشلستی ډلی غړی شو چې په سوریه کې یې فعالیت کاوو .

د روم کاتولیک ډله د نورو په نسبت خورا زیات مال لری ، او خورا مهم مقامونه یې په لاس کې دي له ۱۹۶۰ کال څخه راپه دیخوا د بهرنیو چارو وزارت د دوی په لاس کې دي چې د خارجه چارو وزیر بی له ( کاتولیکی ) څخه بل څوک نشی ټاکل کیدای

د ارمن مسیحی ډلی زیات غړی د لبنان په کمونست حزب کې شامل شوی دی .

او لدی کبله چې د دی ډلی زیات غړی اولسی بنه لری نو په اولس کې د کمونیزم د خپرولو لپاره خورا ګړندی کار کوی ، سره لدی چې کمونیزم له دین سره خورا زیاته دښمنی لری بیا هم د دی ډلی ټول فعالیتونه د کمونیزم د خپرولو په درشل کې دي

او سره لدی چې، د لبنان دولت د کمونیزم حزب په رسمیت نه پیژنی خو بیا هم د کمونیزم حزب د ( نداء ) په نوم جلا مجله لری چې په ښکاره ډول د کمونیزم په لور بلنه او د کمونیزم د دښمنانو مقابله کوی .

که څه هم د لبنان د دی ګډی وډی وضعی لپاره مختلف دلایل ویل کیدای شي خو زمونږ په وړاندی تر ټولو غوره خبره همدا ده چې د عیسویانو ټولی ډلی د ټولو داخلی اختلافاتو سره سره پدی خبره کې په یوه خوله دی چې لبنان باید له عربی او اسلامي عاداتو څخه لری وژغوری ،

**اسلامي ډلی :**

مسلمانان د لبنان له نیمائی څخه زیات دی چې په سنی ، شیعه او دروزو ډلو ویشل شوی دی

د مسلمانانو زياته برخه په بيروت او طرابلس کې اوسيږي.

د بيروت مسلمانانو له فرانسوي استعمار سره جوړه وکړه او د طرابلس مسلمانانو له سورئ سره د يو والي غوښتني ته ترجيح ورکړه ، نو ځکه فرانسويانو د بيروت د مسلمانانو د استقراطي کورنۍ ځينو غړو ته مهمي څوکۍ ورکړې او پدې ډول دا ښکاره شوه چې د بيروت مسلمانان د لبناني دولت په جوړلو کې مهم رول لوبولو ته اماده دي خو د طرابلس مسلمانانو د خپلو اقتصادي مصالحو او جغرافياوي موقعيت له کبله ديته ترجيح ورکړه چې له عربي نړۍ په خاص ډول له سورئ سره يو والي ته هڅه وکړي نو ځکه په طبيعي ډول د دوی په مينځ کې د ( موارنه ) ډلي په ضد د نفرت او تعصب شغلي تر هر چا زياتي پورته شوي.

شيعه مسلمانان له سني مسلمانانو څخه لږ دي :

استعماري ځواکونو د دي دواړو په مينځ کې هومره فاصله زياته کړی ده چې اوس د دوی په مينځ کې داخلي دښمني هومره زياته ده چې له نورو مسيحي ډلو سره يې نلري ، پدی برخه کې د شيعه مسلمانانو د ( تقيي ) عقيده چې شيعه ګان يې له پخوا څخه لري ، خورا مهم رول لري.

نو ځکه مونږ ګورو چې د شيعه ګانو دوستي له عيسويانو سره زياته او زيات شيعه ګان د مارونيانو په کتائب حزب کې شامل شوي دي.

دروز د شيعه ګانو يوه ډله ده چې اوس يې ځانګړی حيثيت خپل کړی دی زيات غړي يې په جبل لبنان ولايت کې اوسيږي چې د ارسلان او الجنبلات کورنۍ يې سياسي مشري په غاړه لري.

د لبنان د مذهبي ډلو سياسي رول هغه وخت ښه څرګنديږي چې د لبنان د سياسي حزبونو څيړنه وشي.

په لبنان کې ۱۶ سياسي حزبونه دي چې هر حزب يې په جلا ، جلا ډول کار کوي ځانګړی اصول او بيل ، بيل پيروان لري او د دوی د جلا ، جلا هلو ځلو په نتيجه کې لبنان په مختلفو لار روان او د استعمار اصل چې وائي ( فتنه واچوه حکومت وکړه ) په بشپړ ډول عملي کيږي.

مهم حزبونه عبارتُ دي له : الکتائب : چې قيادت يې د مرونيانو په لاس کې دي
د النجاده" حزب چې قيادت يې د سني مسلمانانو په لاس کې دي ، پدې حزب کې عام سنی مسلمانان راټول شوي دي خو په تاسف سره بايد ووايو چې منور سنی مسلمانان دا تنظيم له خپل ځان څخه ټيټ ګڼي ، دا تنظيم عوامی تنظيم ګڼي چې بايد د لوړو زده کړو لرونکی کسان پکښې نه وی ، دا تنظيم د (صوت العروبه) په نوم مجله خپروی .

**د لبنان حکومتي سيستم** :

د لبنان د اساسی قانون له مخې د لبنان حکومتی نظام به پارلمانی جمهوری نظام وی چې رئيس جمهوری به د اجرآتو په سر کې ولاړ او د وزيرانو په همکاری به کارونه کوی جمهور رئيس ته يې حق ورکړی چې نړيوال تړونونه او معاهدی لاس ليک او د ملی مصالحو او ملی وحدت د ساتلو په منظور به عند الموقع ولسی جرګی ته راپور ورکوی .
همدا ډول د جنګ او اضطراری حالاتو اعلان د ده په واک کې دی د وزيرانو ټاکل او عزلول او هم د لوړو منصبونو ورکول بی له هغو مقامونو څخه چې قانون په جلا او استثنائی ډول توزيع کړی دی د خارجی سفيرانو اعتمادنامی منل او د دولتی بوديجی منظورول .
قانون ته بايد احترام ولری ، د وطن د خپلواکۍ او د خاوری د تماميت ساتنه د ده په غاړه ده .
سره لدی چې قانون پدی برخه کې کوم صراحت نلری چې رئيس جمهور به له کومی مذهبی ډلی څخه او عقيده به يې په څه ډول وی خو د فرانسوی استعمار له خوا دی خبری د واقعيت شکل خپل کړی دی چې دا د مورانهٔ حق دی د دوی په ګومان د لبنان د سلامتيا يو والی او د خلکو د برابرۍ لپاره پکار ده چې د جمهوری رياست او د ملی امنيت څوکۍ د موارنه عيسويانو په لاس کې پاتی شي .

خو مسلمانان وائی چې په قانون کي پدی هکله کوم صراحت نشته نو ځکه دا مقام د دی ډلی حق ندی ، نو ځکه د صوت العروبه" نومی مجلی د ۱۹۶۰ کال د ۱۲ میاشتي په ۲۹ نیټه ه په ۶۹۲ ګڼه کې د حزب مخالف نظر چې اکثریت یې مسلمانان دی داسی خپرونه وشوه .

د قانون ۱۷ ماده وائی : جمهور رئیس نه پوښتندونکی واکمن دی د دی معنا دا ده چې وزیران لدی حق څخه بی برخی او دوی یوازې کار کوونکی دی چې د جمهور رئیس اوامرو ته باید غاړه کیږدی .

او ۵۳ ماده وائی : حکومت له صدر اعظم څخه نیولی تر وزیرانو پوری د ملت نماینده ګان او ممثلین نه بلکه د دوی واکمنی د جمهور رئیس پوری تړلی ده ، نو ځکه غیر مسئول نه بلکه په ورسپارلو شوو کارونو کې پوښتنه تری باید وشی .

او هم ۶۰ ماده وائي رئیس جمهور د خپلو وزیرانو د کارونو مسئول ندي .

نو د تعجب وړ خبره دا ده چې وزیران د جمهور رئیس له لوری ټاکل کیږی جمهور رئیس د دوی له کړو مسئول نه بلکه دوی په خپله د خپلو کړو مسئول دی پداسی حال کې چې دوی کومه ځانګړی واکمنی نلری نو دوی بی واکه مسئول کسان دی .

د لبنان تاریخي واقعیت دا خبره پخه کړی ده چې د ریاست جمهوری څوکۍ تر ټولو واکمنه او نوری څوکۍ تش په نامه بی واکه څوکۍ دی چې د هیواد په سرنوشت کې هیڅ رول نه لری .

هغه آزادی چې قانون جمهور رئیس ته ورکړی ده چې بیرونی تړونونه په خپله خوښه لاس لیک کولای شی د دی سبب شوه چې کامل شمعون تری بده ګټه پورته په ۱۹۵۸ کال کې یې له امریکی څخه د مستقیمی نظامی مداخلی غوښتنه وکړه او پدی ترتیب یې د لبنان آزادی له خطر سره مخ کړه خو د لبنانی اولس ویښتیا وکولای شو چې شمعون له مینځه یوسی او په موقت ډول د وطن خپلواکی وژغوری تر هغو چې کورنی جنګونه پیل او تر

زياتو کلونو يې د اور لمبې پورته او د هغو شومو اهدافو د پوره کولو لپاره هڅه وشوه چې امريکائی نظامی مداخله پکې ناکامه شوې وه

د صدراعظم په هکله رواج شوی ده چې بايد د رئيس جمهور په خوښه د شورا کوم غړی وټاکل شی ، په قانون کې د ده په برخه کې نه څه صلاحيتونه او نه معلومه لايحه شته نه يې حقوق معلوم دی او نه يې مسئوليتونه او نژدی ده چې يوازې په اداری برخو پوری يې صلاحيت محدود شی

او دا هم رواج شوی ده چې صدراعظم بايد له سنی مسلمانانو څخه وی د سنی مسلمانانو په مينځ کې هم ځينی معلومی کورنۍ دی چې کله يې يو او کله يې بل غړی صدراعظم وی .

زيات وخت صدراعظم پدی نه پوهيږی چې دی به د څومره وخت لپاره کار کوی دا واک يوازې له جمهور رئيس سره ذی ، نو ځکه صدراعظم بايد د رئيس جمهور د لاس نانځکه وی او په ټولو کارونو کې تری مننه وکړی که نه نو رئيس جمهور کولای شي چې په خپله خوښه د صدراعظم لاس ورلنډ او په کور يې کينه وی .

لدی کبله چې جمهور رئيس او صدراعظم په جلا جلا مذهبی ډلو پوری تړلی دی نو ځکه د دی دواړو ډلو د طبعی روابطو له کبله د دوی په مينځ کې کشمکش دوام داروی نو هر يو هڅه کوی چې د خپلو کړو په نتيجه کې ځان ښکاره او د صحنی څرخوونکی څرګند کړی .

لدی کبله چې جمهور رئيس او صدراعظم د مقابلی په دوران کې قانون د رئيس ملاتړ کوي نو ځکه صدراعظم مجبور دي چې داسي قدم واخلی چې په پټه رئيس جمهور قانع وساتی تر څو يې له صدراعظمی څخه لری نکړی او په ښکاره داسی تمثيلی هلی ځلی وکړی چې ګنی دی د جمهور رئيس له کړو سره مخالف دی تر څو چې د مسلمان اولس ملاتړ ترلاسه کړي .

قانون د وزيرانو په هکله وائی چې دا د رئيس حق دی چې څوک وزير وی او د څومره وخت لپاره يې وټاکی خو دا رواج پوخ شوی دی چې جمهور

رئیس د شورا ټول غړی او یا د مذهبی ډلو پارلمانی مشران راغواړی او د کابینی په تشکیل کې ورسره مشوره کوی تر څو د رای اعتماد اخیستلو په مرحله کې له ستونزو سره مخ نشی
که د لبنان تاریخ ته کتنه وشی نو ښکاره به شی چې یوازې رئیس جمهور د معین وخت لپاره ثابت او دایم دی ، صدراعظم د کابنی غړی او د ملی شورا غړی ژر ، ژر بدلیږی
بشارت الخوری یې دلیل داسی وائی : په یو داسی کوچنی هیواد کې چې د وزارتونو غوښتونکی پکې ډیر وی پکار ده چې کابینه ژر ، ژر نوی شی تر څو د زیاتو خلکو له تجربو څخه ګټه واخیستل شی د لبنان حکومتی طرز لکه څنګه چې شیخ بشاره الخوری هم وویل له ټولی نړۍ سره جلا والی لری او همدا ځانګړتوب یې د مذهبی ډلو او سیاسي حزبونو په رول کې هم اثر لری
ستر او مهم علت یې همدا دی چې اغیارو لبنان ته داسی پروګرام جوړ کړی دی چې د مذهبی اختلافونو تعصبونو او یو د بل سره د مخالفت په نتیجه کې یو له بل څخه جلاء او د دوی د شومو اهدافو د پوره کولو زمینه برابره وی

## د لبنان راتلونکی

باید په خواشینی سره ووایو چې د دی اسلامي او عربی خاوری اوسنی وضع ژړوونکی او راتلونکی یې خورا زیاته غمجنه او دردناکه ده
هڅی روانی دی چې په کوچنیو ټوټو وویشل شی ، کوچنی دولت پکې علوینو او دروزو ته او په جنوب کې یې داسی کوچنی مسیحی هیواد جوړ شی چې د اسرائیلو د لاس آله وی ، چې بالاخره یې د خپل پروګرام له مخی په نژدی راتلونکی کې د نیولو شوو عربی خاورو سره یو ځای او د خپلواک خاوری په نوم یې اعلان او صیهونیزم هغه پخوانی هدف تر لاسه کړی چې لیطانی سیند او سهل البقاع ځمکی د زراعت او حیواناتو د روزنی لپاره په کار واچول شی

که عربي اسلامي هيوادونه له کوچنيو اختلافاتو څخه تير نه او د غفلت له خوب څخه راپورته نشي نو ژر به لبنان هغه ډول لاسه ولاړ شي لکه چې نوري اسلامي خاوري له لاسه تللی دي نو بيا به پري ژاړو لکه په اندلس او فلسطين مو چې وژړل

ايا اوس څوک شته چې حق ته پاملرنه وکړي او د لوی الله جل جلاله دا لارښوونه په غور واوري

وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ تَفَرَّقُوا وَاخْتَلَفُوا مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْبَيِّنَاتُ وَأُولَئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ [ د آل عمران سوره ۱۰۵ آيه ]

( او تاسو د هغه چا په شان مه کيږئ چې هغوی سره جلا ، جلا شول او اختلاف يې وکړ وروسته له دي چې هغوی ته ښکاره دلايل راغلل او د همدغو خلکو لپاره ډير لوی عذاب دی )

بيا به نو پښيمانتيا څه ګټه نه لري

او ډير ژر به تيري کوونکي پوه شي چې کوم ځای ته د دوی ورواوښتون دی

ايا د مسلمانانو مشران پدي پوهيږي چې هغه صليبي جنګ چې په ديارلسمی پيړۍ کې پيل شوی وو تر اوسه لا ندی ختم شوی ؟

او ايا پدي پوهيږي چې کاميابي د هغه چا په برخه ده چې ايمان ولري له خدايه وډاريږي د خدای د دين ملاتړ وکړي او د الله تعالی د قانون د عملي کولو لپاره بډی راووهي د جنګ وسله برابره او په استعمال يې پوه شي ؟

آيا پدي پوهيږي چې کاميابي د هغه لښکر په برخه ده چې قوماندانان او لښکريان يې له ګناهونو او وران کاريو څخه لري وي

حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه پدی برخه کې خپل قوماندان سعد بن ابی وقاص ته داسي نصيحت کوی : انما تنصرون بذنوب اعدائکم ( تاسي د دښمنانو د ګناهو له کبله بريمن ياست )



سبحانک اللهم وبحمدک اشهدان لا اله الا انت استغفرک و اتوب اليک

# فهرست

## فهرست

فهرست

فهرست





